د اسلام پیغمبر علیه الصلاة و السلام روغتیا ته لومړی درجه ارزښت ورکړیدی او ویلی دی (له لوی خدای څخه عافیت او معافا وغواړی څکه چا ته له عافیت پرته بل کوم ښه نعمت نه دی ورکول شوی (دغه حدیث ابن ماجه له ابی بکر څخه روایت کړیدی) او هم یی فرمایلی دی (هغه چا ته چی پرهیزگار دوی شته من والی پروانه لری خو د پارسا او پرهیزگاره شخص لپاره روغتیا له شتو او مال څخه ښه دد. دغه حدیث ابن ماجه او حاکم او احمد له معاذ بن عبدالله ابن جنیب له خپل پلار او له خپل تره څخه روایت کړیدی. دغه راز وی ویل (له تاسو څخه هر څوک چی د جسمانی عافیت خاوند وی او په خپل حرکت او انتقال کی بی امنښت ومونداو د ورځی آذوقه یی موجوده وه داسی دی لکه چی دنیا یی موندلی وی او یا د جهان خاوند وی (دغه حدیث ابن ماجه له خپل پلار عبدالله بن محصن انصاری څخه روایت کړیدی)

نو حیرانونکی نه دد که د الله په کتاب او د نبی صلی الله علیه وسلم په سنت کی زیات نصوص پیدا کړو چی د انسان د روغتیا ساتنه تضمین او تقویه کړی او د غه سم او برابر حالت چی لوی خدای د پیدایښت په وخت کی ورکړیدی وساتی. که چیزی د دغو نصوصو په مفهوم کی دقیق شو او په غور سره ورته پام وکړو او بیا وروسته هغه د انسان په لازمو او مناسبو افعالو کی په سمه توگه

تطبیق کړو په هغه صورت کی به پوه شو چی د روغتیا د فقی په باب یو پنډ کتاب په واکی لرو، په دی اساس چی شریعت هم مشخص او ثابت نصوص دی او فقه د دغو نصوصو او شرعی څرګندو ارشاداتو په تطبیق کی د اسلامی فکر په کارول دی.

د دغو نصوصو او مبارکو ارشاداتو پ سر کی له معصوم پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه هغه نص دی چی به بل کلام کی یی ساری نشی پیدا کیدی او هغه د آنحضرت قول دی: (په یقین سرد چی جسم پر تا حق لری، له عبدالله بن عمر څخه متفق علیه حدیث) وروسته له هغه چی اسلام انسانی حقوق تثبیت کړل څوارلس پیړی وروسته انسانانو وکړی شول د بشر د حقوقو نړیواله اعلامیه صادره کړی خو د جسم او جسد په باب یی تر اوسه پوری کومه اعلامیه نه ده صادره کړی چی جسم پر خپل خاوند حق لری، د لوږی په وخت کی باید خوراک ورکی او د ستړیا او ستومانتیا په وخت کی باید راحت ورکی او د اذیت او ناروغیتا له عواملو څخه یی په تنظیف او وقایه کی پام لرنه وکړی او که په ناروغی اخته شو تداوی او معالجه یی کړی او له طاقت څخه لوړ کار ته یی مجبور نکړی.

هغه څه چی وویل شول هر یو یی واجب حق دی چی د اسلام له نظر د نورو

حقوقو په وړاندی که څه هم چی د (الله جل و علا) له حقوقو څخه وی، اهمال او له یاده ایستل - یی جائز نه دی. او د دغو نصوصو ډیر مهم چی د روغتیا او سلامتیا د فقی لپاره موجود دی د رحمن په سورد کی د لوی خدای «ج» دغه فرمودد دد

(ووضع الميزان:
ان لا تطغوا فی الميزان!
و اقيموا الوزن بالقسط
و لا تخسروا الميزان)

دغه جامع آیت د داسی میزان اول عدل په باب خبری کوی چی لوی خدای د ټولو کائناتو په طبیعت او د هغو له جملی څخه د انسان په طبیعت کی ایښی دد، او هغه توازن ته پام راګرځوی چی په ټولو شیانو کی د نظم او انتظام سبب دی. او څرګند وی چی په هغه کی هر ډول اخلال یعنی افراط او تفریط او یا له حد څخه تیری یا کمی او زیاتی دغه میزان او توازن ګډوډوی او له بدتر انجام سره یی مخامخ کوی. لکه څنګه چی لوی خدای فرمایلی دی (یا ایها الناس انما بغیکم علی انفسکم = ای خلکو ستاسو د تیری او سرکشی نتیجه پخپله تاسو ته در ګرځی. الآیه ۲۳ د یونس سورد)

عربي مسلمان طبیب په دی واقعیت پوهیدلی او د روغتیا په ډگرکی یی تطبیق کړی وو ده دغه توازن د اعتدال په نامه یاد کړی دی دغه مشهور طبیب علی بن عباس زر کاله مخکی د خپل کامل الصناعه نومی کتاب دوهم ټوک په دریم مخ کی) په لنډه توگه ویلی دی روغیتا د بدن اعتدال دی. ابن سینا هم زر کاله مخکی د قانون په نامه خپل کتاب کی د دغه توازن اغیز منتوب داسي تعبیر کړیدی.

هغه اعتدال چی د انسان په فطرت کی اغشل شوی دی د افراط او تفریط ترمنځ حالت دی او د اعتدال په حالت کی د دغه میزان یا روغتیایی توازن د ساتلو لپاره او له خلل څخه د هغه ژغورنه او د خلل په صورت کی د اعتدال لوری ته د هغه د راستنولو په خاطر لازمه ده د انسان روغتیایی او صحی استعداد او تیاری ولری. له ابن عمر رضی الله عنهما څخه د بخاری په روایت حدیث (و خذمن صحتک المرضک) همدی ټکی ته اشاره کوی.

د غه صحی او روغتیایی چمتووالی او وړتیا کله د ښی تغذیيي په معنی او کله د ښه مقاومت دوړتیا دلرلو په معنی او یا هم احیاناً پر جسم باندی د رسیدلو فشارونو سختو تکلیفونو په مقابل کی د روانی آرامی لرلو په معنی د دا او حقیقت هم همدادی چی هر اړخیز روغتیا یی استعداد او وړتیا دا ټول احتوا

کوی.

د روغتیایی پوهی له فصلونو څخه د غه فصل چی بیان می کړ نن د نړی په روغتیایی سازمان کی د پیړی له اکتشفافاتو څخه بلل کیدی او د صحت په باب له دوو اړخونو څخه بحث کیږی: روغتایی بیلانس (health balance) روغتیایی وړتیا او استعداد (health potential) او د روغتیا ساتنی لاری چاری حفظ الصحه (health protection) او د روغتیایی چمتو والی د زیاتولو لپارد لاری چاری د (صحت تقویه) (health promotion) بولی، د همدی د وو بعدونو په محدودد کی د نړی روغتیا یی سازمان پنځوس کاله مخکی د صحت په تعریف کی اعلام وکړ چی: صحت عبارت دی له بشپړی جسمی، نفسی او اجتماعی عافیت مندی څخه نه یوازی د ناروغی او ناتوانی نشتوالی.

دا خبرد هغه حدیث را په یادوی چی پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل (سلواالله المعافاة فانه ما اوتی احد بعد الیقین خیراً من معافاة = له لوی خدای څخه عافیت وغواړی ځکه له ایمان وروسته هیڅ ته له عافیت څخه بهتر شی نه دی ورکړ شوی - له ابی بکر صدیق رضی الله عنه څخه د ابن ماجه روایت شوی حدیث) د صحت په باب د نړی د روغتیا یی سازمان تعریف د پام وړ وګرځید چی طبیبا نو مخکی تعبیر اوو. د لویدیځ پوهان د روانی پیړی په لومړی نمایی که له

هغه څه ځخه چې د عربی اسلای تمدن طبیبانو سل کاله مخکی ویلی وو غافله او بی خبرد وو. ابن ارشد چې د اسلامی فقی طبیب و وله نن ځخه اته سود کاله مخکی د روغیتا او صحت په باب ویلی دی صحت او تندرستی هغه حالت دی چې د بدن غړی په هغه سرد پخپل طبیعی فعل او انفعال لاس پوری کوی (د الکلیات کتاب) دغه راز علی ابن العباس زر کاله مخکی په (کامل الصناعه کتاب) کی د صحت د تعریف په باب ویلی دی چې: روغتیا او صجت د بدن هغه حالت دی چې د هغه په واسطه افغال په طبیعی توگه سرته رسیږی، او ابن انفیس (په موجز الطب) کی اووه سود کاله مخکی د صحت او سلامیتا دا شی تعریف کړیدی: صحت داسی حالت دی چې بدن د هغه په شته والی سرد په ځان پوری مربوط افعال په سمه توگه ترسرد کوی. او ناروغی دذی حالت عکس یا ضد حالت دی.

په دی ډول صحت د طبی پوهانو په نزد اصل او اساس دی او مرض د هغه ضد صورت هغوی دا حقیقت د لوی خدای «ج» له دی ارشاداتو ځخه ترلاسه کړی وو (خلقک فسوا ک فعدلک = لوی« خدای «ج» ته پیدا کړی او بیایی جوړ او سم کړی او اعتدالی یی درکړ (د الانفطار سورد) (خلق فسوی = پیدایی کړ، سم یی کړ او سالم یی وگرځاوو – سورد العلی)، (لقد خلقنا الانسان فی احسن تقویم =

هر آینه، انسان مو په ډیر ښه صورت او اعتدال سره پیدا کړ د التین سورد ) (و نفس و ما سواها = او په انسانی ناطقه نفس باندی او په هغه ذات باندی سوگند چی هغه ته یی اعتدال او سلا میتا ورکړه - الشمس سورد )

په دی تعریف کی د پام وړ مسئله د بشپړ عافیت ویل دی نه یوازی عافیت، په عربی ژبه کی (د معافاة) کلمه له (عفو) څخه مشتق شوی چی په اصل کی په برتری او افزونی باندی دلالت کوی او (عفو) د هر شی ډیر ښه ډیر غورد او ډیر زیات دی او دا هماغه صحت او سلامت دی چی مونږ ئی له هرد حیثه انسان ته غواړو د بدن او نفس له پلود او د ټولینز حالت او روحی کیفت له پلود.

*

۲

# روغتیا (صحت) نعمت دی

اسلام روغتیا د ستر نعمت په توگه پیژني چې لوی خدای «ج» خپلو بندگانو ته ارزاني کړیده بلکې له ایمان وروسته یې ستر نعمت بلل کیږي لکه څنگه چې پیغمبر علیه سلامٌ فرمایلي دي (دوه شیان دي چې ګڼ شمیر خلک پکې زیانمن دي صحت او فراغت) دا حدیث بخاري او نورو محدثینو له ابن عباس څخه روایت کړیدی. ابن ماجه له ابي بکر صدیق رضی الله عنها څخه یو بل حدیث روابت کړي وایي (چاته نه دي ورکړ شوي له ایمان وروسته له عافیت څخه بهتر کوم شي.

روغتیا او سلامتیا د لوی خدای «ج» په وړاندې ستر مسولیت دی لکه څنگه چې رسول الله (صلی الله تعالی علیه وسلم) فرمایلي دي د قیامت په ورځ به په لومړي حساب کتاب کې چې له بنده څخه اخستل کیږي وېل کیږي: ایا تا ته مې روغتیا نه وه درکړې او ایا ته مې په یخو اوبو نه وې سیرابه کړی؟ (له ابي برزه



۴

اسلمی څخه د ترمذی روایت) له دی امله پر مسلمان واجب ده چی د دی نعمت ساتنه او پالنه وکړی او د نا مناسب په کارلو له امله یی د اخلال سبب نشی. او که نه ده ته به ددد د عمل متناسب عقوبت ور په برخه شی. چی دا د لوی خدای ثابته طریقه ده (و من یبدل نعمت الله من بعد ماجاء ته فان الله شدید العقاب= او چا چی د خدای نعمت له تر لاسه کولو وروسته بل ډول کړ، بی له شکه چی لوی خدای د سخت عقوبت لرونکی دی - آیه ۲۱۱ د البقره سوره) (ذالک بان الله لم یک مغیراً نعمت انعمها علی قومٍ حتی یغیروا ما بانفسهم = همداسی ده یقیناً خدای «ج» بل ډول نه گرځوی هغه نعمت چی یو قوم ته یی ورکړیدی.

تر هغه وخته پوری چی هغوی هغه شی چی په خپل وجود کی یی لری بدل نکړی - ۵۳ ایت د انفال سوره) خوددی نعمت ساتنه د تندرستی په رعایت او د هغه د بقا او بهبود په عواملو باندی د عمل کولو له لاری تر سره کیږی. پس هر هغه څه چی طبیبان یی د صحت د ساتنی لپاره یادوی مسلمانانو ته په هغو باندی عمل کول له همدی مبدأ څخه لازم گرځی سر بیره پر دی د الله او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم په کتاب کی زیات تعلیمات بیان شوی دی چی د جسم د روغتیا ساتنی لاری چاری په عامه توگه او د هر غړی روغتیا ساتنه په جلا جلا توگه بیان شوی دی.

د دی تعلیماتو او لارښونو په باب زیات مثالونه شته چی د هغو له جملې څخه د نمونې په ډول یادونه کوو: اودس چی اسلام پر انسان فرض کړی او هم په ډیرو مناسبتونوکی د هغه تکرار ته هڅونه شوی لکه څنګه چی پیغبر صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی (د لمانځه کیلی اودس دی (ابن ماجه د ترمذی په روایت له علی رضی الله تعالی عنه) او (له جابر څخه د ترمذی په روایت) د لمانځه کیلی اودس دی. او پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هر لمانځه د اداکولو لپاره اودس کاوو (له انس بن مالک څخه د ترمذی روایت) او آنحضرت وفرمایل: په اودس باندی مداومت نه کوی مګر مومن شخص (ابن ماجه د شوبان په روایت) او ویی فرمایل اودس نیم ایمان دی (ترمذی د ابی مالک اسعری په روایت)

د جنب شخص لپاره مستحب دی چی د خوړو یا بیده کیدو د ارادی په صورت کی دی اودس وشی. له څنګه چی له رسول کریم «ص» څخه پوښتنه وشود چی آیا جنب انسان دی بیده شی یا دی وخوری یادی وڅښي؟ نو وی ویل: هوکی! (ابن ماجه له جابر ابن عبدالله څخه روایت)، د غه راز له خپلی میرمنی سره د مباشرت له تکرار مخکی اودس وکړی (له ابی سعید څخه د مسلم او ابن ماجه په روایت) او هم د غضب په وخت او له غیبت کولو وروسته او جومات ته د ننوتلو په وخت. د آذان، خطبی او د قبر د زیارت او د قرآن لوستلو په وخت کی دی اودس وشی.

۱

# ووضع المیزان

او لوی خدای عدل او نظم مقرر کړ

دا د جسمانی سلامتیا په فقه پوری مربوط د روغتیایی پوهی په باب وینا دد.

فقه ـ لکه څنگه چی پوهیږو په شرعی عملی حکمونو پوهیدنه دد له تفصیلاتو سره. او روغتیا لکه څنگ چی د هغی په ننني تعریف کی ویل کیږی: د بدنی، نفسانی، ټولنیز او روانی بشپړ عافیت حالت دی.

د اسلامی فقی په تالیفاتو او تصانیفو کی د عبادتونو فقه، د معاملاتو فقه، د نکاح فقه او قضائی فقه شته خو د روغتیا د فقی یا په جسمانی سلامتیا پوری د مربوطی پوهی په باب څه نه لیدل کیږی، علت یی دد غه شان فقی نشتوالی او یا د هغی د موجودیت قلت نه دی بلکی په حقیقت کی د بیلابیلو فقو په بابونو کی ددی موضوع خواره وارد راتلل دی او ښائی د زیاتی ګلاله امله پټه پاتی شوی وی.

دغه راز ځوک چې مړی ته غسل ورکوي او هغه مساس کوي او دس کول ورباندې مستحب دي او هم څه چې روغیتا تضمینوي غسل دی چې هغه جنب شخص باندی فرض دی د لوی خدای دد ی قول په دلیل (و ان کنتم جنباً فاظهروا = او که جنب وی ځان ښه پاک کړی = شپږم آیت د المائده سورد ) لوی خدای فرمایلی دی (ولا جنباً . . . حتی تغتسلوا = او نه د جنابت په وخت کی . . . تر هغه چی غسل وکړی- (٤٣ آیت د النسا سورد ) او پیغمبر صلی الله علیه وسلم خپل امتیان د ډیرو مناسبتونو له امله غسل کولو ته هڅولی دی لکه څنګه چی په اونی کی یی یوځل غسل سنت کړی دی او فرمایلی دی: څوک چی دْ جمعی لمانځه ته راځی باید غسل وکړی (متفق علیه حدیث د ابن عمر رضی الله عنهما په روایت) دغه راز د اخترونو لپاره غسل او د حج د احرام، د استسقا د لمانځه د کسوف د لمانځه او د اعتکاف په وخت کی غسل مسنون شوی دی. دغه راز د بدن د بوی دبل ډول کیدو په صورت کی غسل مستحب دی. تطهیر یوازی په عمومی نظافت پوری منحصر نه دی د بدن د ځینو غړو نظافت په خاص ډول هم لازم ګرځولی شوی دی د مثال په ډول د لاسونو مینځل لکه څنګه چی پیغمبر علیه اسلام فرمایلی دی (کله چی د خوړلو اراده وی لاسونه ومینځی (ابن ماجه د ابی هیریرد په روایت ) او د نوکانو اخستل لکه څنګه چی آن حضرت صلی الله علیه وسلم د ابراهمی

سنتونو د یادونی په ترخ کی ختنه کول، د نوکانو اختسل، د تخرگ د ویښتانو په لری کولو د بریتونو د ویښتانو اختسل او لنده ول او ترنامه لاندی ویښتانو په لری کولو ټینگار کړیدی. دغه راز د پښو په نظافت کی (ابو داود د المستورد د بن شداد په روایت) وای د پښو پرهغو تلو د دوزخ له اور د څخه... او دس په زیات دقت او پام لرنی سره وکړی (ابو داود د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په روایت) په دی لړکی ډیره مهمه چارد چی اسلام د هغی په باب ټینگار کړی او لارښوونه یی کړیده د خولی روغتیا ساتنه د ده او پیغمبر صلی الله علیه وسلم په او داسته کی مضمضه کول سنت کړیدی. دغه راز یی د بیرو او غابښونو په تنظیف او مسواک د وهلو ټینگار کړیدی (حکیم ترمذی له عبدالله فاروقی څخه) د مسواک د استعمال په باب یی ارشاد کړی چی مسواک د خولی د پاکی او دلوی خدای د رضا سبب گرځی او په بل حدیث کی یی فرمایلی دی که چیری زما په امتیانو باندی مشقت نه وی هغوی ته به می ویلی ووچی له هر لمانځه مخکی مسواک استعمال کړی.

(متفق علیه د ابی هریره په روایت) او د دی حدیث په بل روایت کی د هر اوداسه لپاره د مسواک استعمال راغلی دی په دی مبارکو احادیثو سره چی د احادیثو په معتبره کتابونو کی روایت شوی څرگندیږی چی د مسواک د

استعمالی هدف په هر ځانګه کی مقصد له هر اوداسه څخه دی. نه دا چی ځینی خلک ځانګه ته د ولاړی په حالت کی مسواک استعمالوی او په نتیجه کی پرته له دی چی د غاښونو خیری په خوله کی خوری او بیا یی تیری کړی بل کوم کار نه کوی.

د رسول کریم فعل د آنحضرت د ګفتار او مقصد ډیر روښانه بیانونکی دی له ابن عباس څخه ابن ماجه روایت کړی چی جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم هر د شپه دوه دوه رکعته لمونځ کاوو او بیا یی مسواک واهه. د غه راز آنحضرت په شپه ورځ کی کله چی له خوبه را ویښیده له اوداسه مخکی یی مسواک استعمالاو (ابو داود له عایشه رضی الله عنهما څخه روایت) او آنحضرت به کله چی خپل کورته ننوت د مسواک په وهلو یی پیل کاوو (مسلم له بی بی عایشه رضی الله عنهما څخه روایت) او کله به چی د شپی له خوبه را پاڅید خپله خوله بی یی په مسواک پاکوله (له حذیفه څخه متفق علیه حدیث)

د مسواک په استعمال کی روزه لرونکی: شخص هم مثتثنی نه دی لکه څنګه چی طبرانی له عبدالرحمن بن غنم څخه روایت کړی چی وی ویل له معاذ بن جبل څخه می وپوښتل ایا په داسی حال کی چی روزه ولرو مسواک استعمال کړو؟ وی ویل بلی پوښتنه می وکړه د ورځی په کوم وخت کی؟ وی ویل سهار او بیګاه ومی

ویل خلک یی مکروه بولی چی پیغمبر علیه السلام فرمایلی دی د روزه دار شخص دخولی د بوی بدلیدل ډیر ښه دی د خدای په نزد د مشکو له بوی څخه. وی ویل سبحان الله هغه ته یی د مسواک د وهلو امر کړیدی او نه یی دی فرمایلی چی خپلی خولی په قصدی توگه بدبویه کړی په دی کار کی خبر نشته د روغتیا ساتنی بل عامل د غوږونو پاکېزه والی دی لکه ځنگ چی په صحیح حدیث کی له ابن عباس څخه ابن ماجه روایت کړی چی حضرت پیغمبر علیه السلام خپل غوږونه په سبابه گوتو باندی مسح کړل او دواړه غتی گوتی یی د غوږونو له شا سرد و موښلی او په دی ډول یی د غوږونو دننه او بهر برخی مسح کړی.

دغه راز د سترگو په پاکی ټینگار کوی. د سترگو کونجونه به یی موښل (له ابی امامه څخه د ابن ماجه روایت) او هم یی د پوزی په پاکی کی زیار ایسته کله چی اودس کوی او به په پوزه کش کوی او بیایی بیرته سوخ کړی (له ابوهریره څخه د مسلم په روایت) او (له سلمه ابن قیس څخه د ابن ماجه او ترمذی په روایت) او د ویښتانو د نظافت په باب یی فرمایلی دی: هرچاچی د سرویښتان پری ایښی وی باید د هغو درناوی وکړی او هم د بریتو او تناسلی غړو د نظافت په باب توصی شوی دی پیغمبر علیه السلام وویل هر کله چی څوک قضای حاجت وکړی باید دری ځلی د نجاست دوتلو ځای پاک کړی (له محمد بن عبدالله بن مسلم





څخه د ابن حزم په روایت) ، انس بن مالک وایي کله به چې پغمبر علیه السلام قضای حاجت کاوو مابه د استنجا لپارد او به حاضرولی (متفق علیه) ان بی بی عایشي مسلمانو ښځو ته د تعلیم ورکولو په وخت وویل: خپلو خاوندانو ته ووایاست چې په اوبو باندی استنجا وکړی. زه هغوی ته د دی خبری په کولو شرمیږم ځکه پیغمبر علیه السلام همداسی کول، (ترمذی) له دی سره بیرد د نظافت په باب نوری لاربنونی هم شته.

*

دغه راز د لوی خدای له مهمو نعمتونو څخه چې د نفسی او جنسی روغتیا تضمینونکی او د کورنی بنست د ټولنی د تشکیل اساس دی ازدواج دی چې لوی خدای عزوجل هغه د خپل قدرت او انعمت په ګڼ شمیر آیتونو کی یاد کړی دی. د نحل د سوری په ۷۲ آیت کی ویل شوی دی (والله جعل لکم من انفسکم ازواجا = او لوی خدای ستاسو له خپل جنس څخه تاسو ته جوړه (جفت) پیدا کړد) او د الروم د سوری په یووشتیم آیت کی (ومن آیاته ان خلق لکم من انفسکم ازواجا لتسکنوا الیها و جعل بینکم مودة و رحمة = او د لوی خدای عزوجل له نښو څخه دا چې تاسو ته یی ستاسو له خپل جنسي څخه همسران (جفتان) پیدا کړل (هست کړل) چې له هغوی سره آرامتیا ومومی او ستاسو ترمنځ یی محبت او مهربانی

پیدا کړه ) د النسا د سورې په لومړی ایت کی (خلقکم من نفس واحده و خلق منها زوجها ) تاسو یې هست کړی له یو شخص او له هغه څخه یې هست کړه د هغه جوړه (جفت).

د دینداری او دیانت په سبب، دحسب او اعتبار به سبب، د مال او شتو په سبب او د ښکلا په سبب. ته باید هڅه وکړی د دینداره ښځی په پیدا کولو بریالی شی (له ابی هریره څخه د متفق علیه حدیث) په دیٰ ارشاد کی جمال، مال او حسب نه دی نفی شوی خو په مهم شرط ټینګار دی چی له هغه پرته نور شیان بی ارزښته دی. په مسلمه توګه د غه مهم او حیثیت لرونکی شرط دینداری ده.

سر بیره پر د غو حدیثونو په یو بل حدیث کی چی دوه ضروری برخی لری، چی له دی دوو څخه یوئی سازش، آرامی، مهربانی، او حلاله ګټه اخستنه تضمینوی او بله برخه ئی د بشر دبقا تضمینونکی ده. چی ددواړو هدفونه ازدواج دی او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم هغه فرموده ده چی وایی (تزوجوا الودود الولود ) = له داسی ښځی سره ازدواج وکړی چی خوښونکی او زاېا (زیږونکی) وی (له معقل ابن یسار څخه د نسائي روایت) او د ازدواج د کامیابی تضمینونه دادی چی اسلام د غوښتنی وړ ښځی پد کتلو په باب فرمایی او د غیبابی انتخاب پلوی نه ده او نه یې خوښوی لکه څنګ چی رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایی که

چېرې له تاسو څخه څوک وغواړي ښځه وکړي د امکان په صورت کې باید دغه ښځه ووینی (له جابر څخه د ابو داود په روایت او (له مغیرد ابن شعبه څخه ترمذي او نسائي او ابن ماجه) یو بل حدیث روایت کړی چې وایي (هغې ښځې ته چې غواړي ازدواج ورسره وکړي وګوره چې دا ښه کار دی، ستاسو دواړو ترمنځ د محبت او سازګاری لپاره.

دغه راز اسلام ترغیبوي چې د زوجینو عمر او کالونه سره نژدې وي. کله چې ابی بکر او عمر رضی الله تعالی عنهما هر یو له بی بی فاطمی سره د ازدواج غوښتنه وکړه حضرت پیغمبر علیه السلام وفرمایل فاطمه کوچنی ده خو کله چې حضرت علي رضی الله عنه دغه غوښتنه وکړه له هغه سره یې نکاح کړه. (له بریده څخه د نسائي په روایت)، د تضمینونو له جملې څخه بل ضمانت نسل او اولاد دی د ښه همسر په انتخاب سره څکه آنحضرت وفرمایل د خپلې نطفې لپاره ښه انتخاب وکړی (له بی بی عایشې رضی الله عنها څخه د ابن ماجه او دارقطني او حاکم په روایات) دغه انتخاب او خوښونه د زمان په بدلون سره بدلون مومی څکه د تضمین په هره وسیله د ښه انتخاب مسئله په کار ول کیږي. د نویو طبي معانیاتو په شمول.

له جنسي پلوه د ازدواج د کامیابۍ بل تضمین دا چې اسلام حلال جنسي عمل

بدنه پولی بلکی هغه د نیک پاداش وړ عمل یو د برخه بلل کیږي، لکه څنګه چی پیغمبر علیه السلام فرمایي: کله چی له خپلی میرمنی سره جماع کوي د صدقی ثواب لري. وپوښتل شول ای د خدای «ج» پیغمبره له مونږ څخه که یو د خپل شهوت عمل سرته رسوي احبر تر لاسه کولی شي؟ وی فرمایل که خپل شهوت په حرامه توګه په کار وی ګناهکار کیږي او که حلال یی مصرفوی احبر مومی. (له ابی ذر څخه د مسلم په روایت دغه راز اسلام توصیه کوي چی له جماع مخکی په ملاطفت او د شهوت په پارولو لاس پوري کړي پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له تا سو څخه هیڅ یو باید د اوښ په شان پخپله ښځه ځان وانچوي، باید قاصد موتر منځ وی. وپوښتل شول چی قاصد څه ته وایی؟ وی فرمایل مچه اوخبري. (دیلمی په مسند الفردوس نومی کتاب کی) دغه راز هر یوی ښځی او مړه ته امر شوي دي چی د مقابل لوري د قضا شهوت لپاره انتظار وباسی. الحدیث (له انس رضی الله تعالی عنه څخه د ابویعلی او ضانی په روایت)

ددی تر څنګ د لوی خدای «ج» دا ارشاد دی (ولهن مثل الذی علیهن با المعروف = ښځوته روا حق دی، دغه راز پر ښځوباندی د هغوی د میړونو وا حق دی. سورد بقره - ۲۲۸ آیت)

اسلام د حیض په وخت کی جماع حرامه کړیده (د بقری سوری ۲۲۲ آیت) او

د ښځی او میړه ترمنځ یی د جماع هرډول حالات په دی شرط چی په فرج کی تر سره شی مباح گرځولی دی (د البقره شوری ۲۲۳ آیت) او پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل د ښځی په دبر (مقعد) کی قضأ شهوت مکوی.

*

او هم د روغتیا د تامین او پیاوړ تیاله عواملو څخه یو هم ښه غذا دد. په دی ډول د پاکی او حلالی غذا تر لاسه کول او له ناوړه غذا څخه ډډه کول د تندرستی ضمانت بلل کیږی او الله سبحانه و تعالی فرمایلی دی (کلوا من طیبات مارزقناکم = وخوری هغه پاک او حلال شیان چی تاسوته مو روزی گرځولی. د البقری سوری ۱۷۲ آیت) او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په وصف کی یی فرمایلی دی (ویحرم علیهم الخبائت = او پر هغوی باندی ناولتیاوی حراموی دا لا اعراف د سوری ۱۵۷ آیت) د شریعت له اجازی پرته له پاکو خوړو څخه ډډه کول د روغتیا منافی عمل بولی او دی کارته اجازه نه ورکوی مهربانه خدای «ج» فرمایی: هغه پاکیزه شیان چی تاسوته مو حلال گرځولی مه حراموی. (د المائده سوری ۸۷ آیت) صحی خواړه عبارت دی له متوازنه خوړو څخه ترڅو هغه عدل او نظم چی لوی خدای «ج» په هر شی کی په پام کی نیولی تحقق و مومی او تثبیت شی. او بیان یی د الرحمن په سوره کی راغلی دی.

ووضع الميزان :

ان لا تطغوا في الميزان !

و اقيموا الوزن بالقسط ؛

و لا تخسروا الميزان )

متوازن خواړه. لومړی: د کمیت او اندازی له پلوه توازن چی په خوړو کی زیاتی د صحت او روغتیا لپاره مضر ده څکه په مستقیمه توگ د بد هضمی سبب گرځی او په غیر مستقیم توگه د زیاتو خوړوله امله د ناروغی سبب کیږی لکه د شکری ناروغی د وینی فشار، د شریانونو ناروغی د زړه او شریانونو او دماغ ناروغی چی د زړه د دریدو او فلج سب کیږی او داسی نور او په دی ډول معده په حقیقت کی د ناروغی د کورښه غوره کوی. نو په خوړو کی اسراف د اسلامی تعلیماتو خلاف ده. لکه حنگه چی متعال خدا «ج» فرمایی (کلوا من طیبت ما رزقنکم و لا تطغوا امینه = وخوری هغه پاکیزه شیان او خواړه جی ستاسو لپاره می روزی کړیدی او په هغو کی زیادت (اسراف) مکوی. د ط سورد ۸۱ آیت او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی. انسان ډک نکړ لوښی، له گیډی څخه بدتر - انسان ته څو کوچنی مړی (لقمی) چی د هغه د ژوند لپارد ضرورت دی کافی دی. که چیری نفس ورباندی غلبه وکړی نو له دریونه یود برخه

لکه څنګه چې ویل شوي دي زیات نژدي والی او قرب پخپله حجاب دی. او دا یو عاجزانه هڅه ده چې که خدای غوښتي وي د اوسنی ستر بدلون پ مرسته کوم چې د روغتیا د مفهوم په باب په ټوله نړۍ کې را منځ ته شوی له بیلا بیلو فقي برخو څخه د روغتیا د فقی را ټولولو او تدوین لپاره بنسټ شي او په نړۍ کې د روغتیا یې چارو ټول مسولین هغه هدف ته د رسیدو په خاطر چې که خدای «ج» غوښتي وي تر دوه زرم کاله پورې ټولو ته د روغتیا او سلامتیا د زمینې برابر ول دي کار کوي او په دې لاره کې یې د روغتیا یې اساسي چارو د رعایت کولو لارې چارې غوره کیدي او څومره مناسبه خبره ده چې مسلمانان دغه اصل ته د بلنې د مخکښانو د مدنیت ساتونکي وي چې هغه په لیکلې توګه له ځانه سره لري. او لوی خدای «ج» د ډېر غوره امت په توګه ستایلي دي (آل عمران ۱۱۰) او دا غوره والی طبعاً د بشریت د مشکلاتو د حل او د هغوی د حل او د هغوی د حالاتو د ښه کولو په لاره کې د ښو عواملو د تدارک لپاره د ښو لار و چارو په واندي کولو کې د دوی دوس او توان غوښتونکي دي.

مونږ به په یقین سره د روغتیا یې فقی د تدوین په لاره کې د هلوځلو له امله د انسان د جسماني سلامتیا د ساتلو لپاره د ښې لارې او نیکې طریقې پیدا کولو ته لاس بري و مومو.

د خوړو ، له دريونه يوه برخه د څنباک او له دريونه يوه برخه ځای دی د تنفس لپاره پريږدی. (له معدی کرب څخه د ترمذی روايت) او په بل حديث کی فرمايی د يو تن خواړه دو تنو لپاره ، ددوو تنو خواړه د څلورو او د څلورو تنو خواړه د اتو تنو لپاره کفايت کوی. (له جابر څخه د مسلم په روايت).

خو صحی خواړه چی هغه هم د کيفيت له پلوه متوازن خواړه دی. ځکه هر ډول خوراکی مواد جی الله سبحانه و تعالی د جسمانی اړتيا د لری کولو لپاره خپلو بندګانو ته عنايت کړيدی احتوا کوی. لکه پروتينونه ، چربی ، نشائستوی مواد ، مالګی ، ويتامينونه او نور هغه شيان چی لوی خدای « ج » هغه د النحل په سورد کی چی د النعم (نعمتونو) په سوره مشهوره شوی ياد کړيدی.

د څارويو د غوښی په باب (والا تعام خلقها لکم فيها رف و منافع و منها تأکلون = او تا سوته يی څاروی پيدا کړل او په هغو کی ستاسو د بدن د تودولو لپاره ګټی دی ، او هغه خوری. د النحل د سوری ۵ آيت) او د نباتی خوړو په باب (ينبت لکم به الزرع و الزيتون والنخيل و الانعاب و من کل الثمرات = د اوبو په وسيله مو تاسو ته غلی ، زيتون ، خرما او انګور او هر ډول ميوی شنی او زرغونی کړی.

او د شيدو په باب: (نسقيکم مما فی بطونه من بين فرث و دم لبناً خالصاً

شائغاًللشاربین = تاسو ته درڅښو د هغو شیانو له منځ څخه چې د څارویو په ګیډو کې دي لکه خوشایي او وینې - خالص شیدې چې د څښونکو لپاره له مزې او خوند څخه ډکې دي. (النحل سورې ٦٦ آیت)

دشاتو په باب: (یخرج من بطونها شراب مختلف الوانه فیه شفاء الناس = د شاتو د مچې له ګیډې څخه څښونکې مواد او په هغو کې د وګړو لپاره شفا ده (د النحل سورې ٦٩ آیت) او د حج د سورې په ٣٦ آیت کې (والبدن جعلنا هالکم من شعائرالله لکم فیها خیر = او د قربانۍ اوښ مو وګرځاوه د خدای د دین له نښو څخه، تاسو ته په هغه کې خیر او ښې ګټې دي. او د النعام د سورې په ١٤١ آیت کې (کلوا من ثمره اذا اثمر = وخورئ د هغو میوې کله چې میوې وکړي) او د یسین د سورې په ٣٣ آیت کې: (و اخرجنا منها حباً فمنه یأکلون = او را وموایستل له ځمکې څخه غلې، دانې چې هغه خوړل کیږي.

اسلام بشپړه غذا ښه بولي د مثال په ډول سبوس لرونکې وړه پر غلبیل شویو وړو ښه بولي لکه څنګه چې مروی ابن ماجه له ام ایمن څخه حدیث روایت کړی چې ام ایمن و ائی کله مې چې وړه چڼ کړل او له هغو څخه مې پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته ډوډۍ پخه کړه آنحضرت وویل دا څه دي؟ ورته و مې ویل هغه خواړه دي چې زمونږ په سیمه کې یې جوړوي، هم په همدې ډول تاسو ته ډوډۍ جوړه کړ

آنحضرت وفرمایل هغه بیرته له سبوس سره یو ځای کړه او بیا یې له سره پاخه کړه. دغه کامله خواړه د جسم د روغتیا لپاره ضروري ویتامینونه ساتي، د کولمو حرکت نور مال کوي او په پای کې انسان له قبضیت او د کولمو له سرطان څخه ژغوري.

د صحي قواعدو په جمله کې یو هم د لاسونو مینځل دي البته له خوړو مخکې چې صحت ته له مضره شیانو پاک او معده د مضره شیانو له امله له التهاب څخه لري وساتل شي. پیغمبر علیه السلام به کله چې د خوړو نیت کاوو خپل لاسونه به یې مینځل (له بي بي عایشي څخه د مروي نسائي حدیث)، د خوړو او څښاک د ساتلو نور روغتیایي قواعد دادي چې اسلام د خوړو د پټولو او پوښلو امر کوي رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: د خوړو د لوښي سرپټ کړې (له جابر څخه د مروي ابن ماجه حدیث) او د امام بخاري په روایت: پټ وساتي خوراکي مواد او څښاکونه دغه راز آنحضرت فرمایلي دي: له تاسو څخه دي هیڅوک په ولاړې سره اوبو کې بولي نه کوي (له ابي هریره څخه د ابن ماجه حدیث) او هم یې منع کړې دي داچې څوک د غسل په ځای کې باید پیش آب خوشې نکړي (له عبدالله ابن مغفل څخه د ترمذي روایت) آنحضرت به فرمایل (اتقوا الاعینین)

د لعنت له دوو سببونو څخه ډډه وکړی. خلکو وویل هغه دوه لاعنین (د لعنت سببونه) کوم کوم دی پیغمبر وفرمایل، د خلکو په لارد کی بولی کول او د سیوری په ځای کی بولی کول. (له ابی هریره څخه د مسلم په روایت) او په هغه حدیث کی چی ابو داود له معاذ بن جبل څخه روایت کړیدی پیغمرب علیه السلام فرمایلی د د لعنت له دریو عواملو څخه ډډه وکړی. د اوبو اخستلو په ځای، د لاری په منځ او د سوری په ځای کی بولی مکوی. دا پت واقعیت نه دی چی د اوبو شاوخوا ځایونو ککړول په بولو سره او د هغو په مربوطو مکروبونو سره د ناروغیو د خپریدو اساسی لاری چاری جوړوی د وهم په غیر مستقیم توگه په دغو اوبو باندی د سبو او میوو د کروندو د خړوبیدوله امله دغه خوراکی مواد هم ککړیږی. او په سیوری کی یود باریکه خبره دا ده چی هغه څه چی په سیوری کی وی، لمریی نشی پاکولی نو له دی کبله دغه شان ځایونو کی د ناولتیاو اچوال د جراثیمو د تکثر سبب گرځی.

*

د اوبو د شاخوا او عامه لارو د ککړولو نهی د سیمی د اوسیدونکو د سلامتی او روغتیا ساتنی په مقصد د اسلامی تعلیماتو یود برخه ده. د اسلام پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایی د عامه لاری له سر څخه د اذیت کونکو مواد ولری

کول د صدقی پاداش لری (له ابی ذر څخه د ابو داود په روایت) او هم یی ویلی دی: زما د امت ښه او بد کارونه را ته راوړاندی کړی شول د هغوی د ښواو وړ کارونو په جمله کی له لارو څخه د اذیت وړ شیانو لری کول دی (له ابی هریره څخه د مسلم په روایت).

لوی خدای سبحانه و تعالی د خپل مجید کتاب په څو برخوکی د ځمکی پرمخ له فساد څخه خلک منع کړیدی. د ژوند د چاپیریال تباهی او فساد هم د ځمکی پر مخ د فساد یوه برخه بلل کیږی. بلکی له ټولو زیات په ذهن کی راځی لوی خدای فرمایی.

د خدای «ج» له خوا ارزانی شوی روزی وخوری او وڅښی او د ځمکی پرمخ تباهکاری او فساد مه کوی (د البقره سوری ٦٠ آیت) او بیایی وفرمایل به ځمکه کی فساد مه کوی (د الاعراف سوی ٨٥ آیت) ټولو پیغمبرانو علیه السلا خپل امتیان په ځمکه کی له ورانکاری او فساد څخه منع کړیدی.

متعال خدای له داستی فساد څخه چی د ځمکی پرمخ د بوټو او ځاریو د له منځه تللو سبب ګرځی په خاص ډول یادونه کړیده (و من الناس من یعجبک قوله فی الحیات الدنیا و یشهد الله علی ما فی قلبه و هو الدالخصام و اذا تولی سعی فی الارض لیفسد فیها و یهلک الحرث و االنسل و الله لا یحب الفساد = په خلکو

کړ داسي څوک شته چي گفتار يې د دينا د ژوند په باب ستا د تعجب سبب گرځي او هغه څه چي په زړه کي لري خداى «ج» شاهد گوځوي په داسي حال کي چي دى له ډير و سر سخته دښمنانو څخه دى او کله چي مخ واړوي (اوله تا څخه ولاړشي) هڅه کوي په ځمکه کي فساد وکړي، کروندي او څاروي تباه کړي او لوى خداى شرارت او فساد نه خوښوي. (د ابلقره سوړى ٢٠٥ آيت) اما ابن حزم (په الحلى نومي خپل کتاب کي) په همدى آيت باندي په استدالال سره وايي له وښو څخه د څارويو منع کول او يا د هغو د څريدو او اوبو څښلو او يا د ميوه لرونکوو نواو کروند ونه خړو بول چي د هغوى د تباهي او هلاکت سبب گرځي مخنيوى کوي چي دا د قرآني نص مطابق په ځمکه کي فساد او د نسل او کښت هلاکت دى او لوى خداى دا کار نه خوښوي.

پيغمبر صلي الله عليه وسلم خپل امت کرکيلي او زراعت ته چي د نباتي ثروت د زياتوالي او د چاپيريال د هوا دښه کيدو سبب گرځي تشويقوي. لک څنگه چي ويلي يې دى که چيري مسلمان نيالگي کينوي او په کرکيلي لاس پوري کړي چي له هغه څخه انسان يا حيوان يا بل کوم موجود تغذيه وکړي دا دده لپاره صدقه بلل کيږي (له جابر څخه د مسلم په روايت) دغه راز فرمايي هر هغه څوک چي شاړه او بيکاره ځمکه ژوندي او آباده کړي هغه ځمکه ‌دى د همده وى (له جابر

شخه د ترمذی په روایت) او آنحضرت له سخت ضرورت پرته دونی وهل (چپه کول) په کلکه سره منع کړی او ویلی یې دی: هر څوک چې د سدر ونه (د کنار ونه) قطع کړی لوی خدای به دهغه سر په اور کې برابر کړی (له عبدالله بن حبشی شخه د ابو داود روایت) پیغمبر علیه السلام لومړی شخص وو چې داسی سیمی ئی جوړی یا معین کړی چې دونو قطع کول او د ښکارویو وژل پکی منع وو مدینه منوره یې دولس میله په دولس میله کې تر دغه شان حمایت لاندی ساحه وتاکله چې ونی یې دی نه قطع کیږی مگر هغه چې اوښان یې خوری (له عدی بن زید شخه د ابوداود په روایت) او هم یې ویلی دی په مدینه کی دی ښکارویو غرض نه کیږی او ونی دی نه قطع کیږی مگر هغه چې اوښان یې خوری (له علی رضی الله عنه شخه د ابو داود په روایت) او اعلام یې وکړ: ما حرام وگرځوله د مدینی د دووو سنگلاخو ترمنځ ساحه. په دی ډول چې د دغی ساحی ستری اغزی لرنکی ونی دی قطع نشی او ښکاروی دی ښکار نشی (له سعد بن ابی وقاص شخه د امام احمد په روایت) او هم یې د (وج) ناوه چې په طائف کې ده ترحمایی لاندی راوستله او په هغه ساحه کی یې صیداو د عضاه ونه (سر د اغزی لرونکی ونه) حرامه وگرځوله (له زبیر رضی الله عنه شخه د احمد او ابو داود په روایت)

*

دغه راز د حفظ الصحی له وسایلو څخه او د هغو پیاوړتیا د هر غړي حق دی لکه څنګه چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وویل په یقین سره چې ستا د واړه سترګی په تا حق لری (له عبدالله بن عمر څخه متفق علیه روایت) او په دی باب چې انسان له خپل طاقت څخه زیات وجود ته تکلیف ورنکړی. دا حدیث شریف دی. پرتاسو د ه څمره چې توان لری ( له بی بی عایشی رضی الله عنها څخه متفق علیه روایت) او هم د صحت د پیاوړتیا له اسبابو څخه د جسم پیاوړتیا د ده په تیرد بیا په مناسب چلند او عمل سره په دی ارتباط رسول کریم «ص» فرمایلی دی له کمزوری مسلمان څخه پیاوړی مسلمان بهتر د ه (له عبدالله بن عمر څخه د مسلم روایت او هم یی وفرمایل په هغه څه کی چی درته ګټه رسوی حریص اوسی. (له ابی هریره څخه د مسلم او ابن ماجه روایت)

*

په پای کی یادونه کیږی چی د حفظ الصحی د پیاوړتیا د ټولو وسایلو او لارو چارو په واندی ددی نعمت د بل ډول کولو په باب سخت خبر دادی ورکړ شوی دی چی انسان به د هغه په بدل کی د روند تاوان ادا کړی. دغه حدیث په ډیره روښانه توګه پر هغه دلالت کوی: د لوط په قوم کی فاحش عمل په بی پردی ډول ښکاره نشو مګر دا چی د طاعون ناروغی او هغه دردونه چی د هغو په پلرونو کی نه وو

هغوی پری اخته شول (له عبدالله بن عمر څخه د ابن ماجه او ابو نعیم روایت)

او لوی خدای فواحش په غوڅ توگه حرام کړي او فرمایلي یی دی (و لا تقربو الفواحش ما ظهر منها و ما بطن = او فواحشو ته مه نژدی کیږی. نه په څرگنده او نه په پټه توگ - د النعام سری ۱۵۱ ایت) او داسی امرینی وکړ (قل انما حرم ربی الفواحش ماظهر منها و ما بطن و الاثم = ووایاست ای پیغمبره چی لوی خدای حرام کړی فواحش، هغه څه چی څرگند فواحش وی او که پټ او گناد یی منع کړد، د الاعراف سوری ۳۳ آیت)

****

۳

# لا ضرر و لا ضرار

دا یوازنی جامع عبارت هغه حدیث شریف دی چی دار قطنی له ابی سعید خدری څخه روایت کړیدی او په نورو عبارتونو کی هم پری ټینګار شوی دی لکه د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په ځیر: ملعون دی هغه شخص چی مسلمان شخص ته ضرر ورسوی یا هغه تیرباسی (له ابوبکر رضی الله عنه څخه د ترمذی روایت) او د آنحضرت قول: هر څوک چی یو مسلمان ته زیان ورسوی خدای «ج» به بیرته د ده ته زیان ورسوی (له ابی صرمه څخه د ترمذی روایت).

ښایی ډیره غوره خبره چی د ضرر او ضرار په تعریف کی بیان شوی د ښاغلی رشید رضا (د خدای رحمت دی وی پری) د **مائده د سوری په تفسیر کی وی او هغه** داچی: هدف د فردی ضرر لری کول د مشترک ضرر رفع کول دی او له همدی ځای څخه د مفاسدو د دفع کولو او د مصالحو د ساتنی قاعده د شرعیه نصوصو د مقاصدو په رعایت سره په پام کی نیول شوی دی. د ضرر تحریم په کتاب الله کی

او مونږ کله چې د روغتیا په باب خبرې کوو د نن ورځې په مشهور د معنی یعنې علاجي (معالجوي) طب نه محصور وو، څکه طبیبان له پخوا څخه تر اوسه پورې په دې خبره متفق الرایه دي چې طبابت دوه ډوله دی، د روغانو لپاره د روغتیا ساتنه او د دوا درملو په واسطه د ناروغانو د روغیتا اعاده. له پیغمبر (علیه الصلاة والسلام) څخه د ځینو ناروغیو لپاره د ځینو درملو په باب حدیثونه بیان شوي دي او ځینو عالمانو هغه د دین د جزء او د لوی خدای «ج» د وحې په توګ بللې او تر پام لرنې لاندې نیولې دي، خو واقعیت دا دی لکه څنګه چې په متفق علیه حدیث کې له جابر بن عبدالله (رضی الله تعالی عنه) دی څخه شوي دي چې پیغمبر (علیه الصلاة والسلام) فرمایلي دي که چیرې ستاسو د درملو په کوم درمل کې خیر یا شفاوې هغه د حجام (وینې استخونکي) نښترکې او یا د ناروغې د ضرورت په اندازه د شهد وڅښل یا په اور باندې تکر کول دي. خو دا غول مې نه دي خوښ.

ځینې نور دمل او تداوي د ځانګړې چاپیریال له ځانګړې هوا، او بو او ځانګړو شرایطو سره متناسب دي لکه د عربو د استوګنې بیاباني سیمې چې امکان نه لري په عمومي ډول په هر ځای کې ټولو خلکو لپاره د تطبیق وړ وي لکه څنګه چې د امام ابن قیم په (زاد المعاد) کې ویل شوي دي «رسول الله صلی الله

بیان شوی. د لوی خدای «ج» په دی قول کی (قل انما حرم ربی الفواحش ماظهر منا و ما بطن و لالثم - د الا عراف د سوری ۳۳ آیت) د الله «ج» په قول د انعام په سوره کی په ۱۲۰ ایت کی) (و ذرو اظاهر الاثم و باطنه = او ترک کړی د هغه پته او ښکاره گناه او د بقره د سوری پ ۲۱۹ ایت کی د حق سبحانه وتعالی په دی بیان چی د شرابو او قمار په باب دی (فیهما اثم کبیرو منافع الناس و اثمهما اکبر من نعفهما = په دواړو کی خلکو ته ستره گناه او گټه دده او د شرابو او قمار گناه له گټی څخه زیاته او ستره ده). پدی آیت کی لوی خدای عزوجل گناه د گټی نقص کونکی گرځولی ده. نو گناه ضرر دی او لکه څنگه چی وینو د ضرر حرام والی د قرآن کریم به نص سره ثابت شوی دی. مسلمان ته روانه ده چی ځان زیانمن یا متضرر کړی. یا په دوه اړخیزه ضرر لاس پوری کړی او دا په قرآن کریم کی په زیاتو ځایونو کی لیدل کیږی. اوس باید ووینو چی د غه اصل په صحت پوری په مربوطو چارو کی په څه ډول تطابق موی.

**اضرار به نفس (ځان ته ضرر رسول):**

دا عمل حرام دی ځکه پرورد گار فرمایی (و لا تقتلو انفسکم = او مه وژنی ځانونه (د النعام سوری ۲۹ آیت) اوهمم (و لا تلقوا بایدیکم ابی التهکلته = او ځانونه د هلاکت سره مه مخامخ کوی (د البقره سوری ۱۹۵ آیت) او د پیغمبر

علیه سلام د دی قوال په دلیل (لا ضرر) ضرر منع دی. نو روا نه دد چی مسلمان شخص ځان له خطر سره مخامخ کړی. د ناروغی خطر او نور زیانونه.

لکه څنګه چی د اسلام پیغمبر علیه السلام فرمایی: مسلمان ته نه ښایی چی ځان خور کړی و پوښتل شول څنګه خواروی؟

آنحضرت په ځواب کی وویل: په داسی کار لاس پوری کوی چی وس یی نه لری (له حذیفه څخه د ترمذی، ابن ماجه او احمد په روایت) له ناروغیو او کړاوونو سره د انسان مخامخ کیدل یا د هغو له سببونو سره یا دبی پروائی له امله چی د سلامتیا په ساتنه کی پام لرنه نه کوی.

اسلام په ټولو دغو برخوکی ګتوری او اغیزمنی لارښونی او تعلیمات لری او پر مسلمان فرد یی لازم کړیدی چی.

هغه څه ته چی دده روغ رمټ ژوندانه ته ګټوروی بشپړ علاقه مندی ولری. لکه ښه خواړه او په خوړو او څښاک کی اعتدال، او صحت ته په ګټهور و سپورتونو اقدام کول او د بدن او غړو د حقوقو پر ځای کول د استراحت او د حالاتو د رعایت له لاری د پیغمبر علیه السلام په قول له هغه څه سره چی تانه ګټه رسوی علاقه مندی ولره (له ابی هریره رضی الله عنه څخه د مسلم او ابن ماجه په رویات) او هم د آنحضرت قول دی: د تندرستی د ساتنی لپاره ناروغیو ته پیش

بین او متوجه اوسه. (له ابن عمر رضی الله عنه څخه د بخاري په روایت.) او دغه راز دا فرموده یی: هر آینه ستا جسم پرتا حق لري (له وهب بن عبدالله څخه د بخاري په روایت) او د آنحضرت دا ارشاد: هغه څه چې په خوړو یی مصرف کړي صدقه بلل کیږي (له مقدام بن معدیکرب څخه د بخاري په روایت) دغه راز دا فرموده ی: به یقین سره ستا د واړه سترگي په تا حق لري (له عبدالله بن عمر څخه متفق علیه روایت.)

له ناروغی څخه دوقایی په سببونو باید اقدام وشي یعني وقایوي عملونه ترسره شي، ځکه پیغمبر علیه السلام فرمایلي دي: هر څوک چې له بدی څخه ډډه وکي محفوظ پاتي کیږي خطیب په خپل تاریخ کی له ابی هریره څخه روایت کړیدی) په دی لړ کی د ناروغیو له منابعو څخه دلري کیدو تدبیرونه هم شامل دي لکه له زنا او لواطت او نورو فراحشو څخه ډډه کول، لکه څنگ چې متعال خدای «ج» فرمایي (و لا تقربوا الزنا انه کان فاحشته و ساء سبیلاً - او زنا ته مه نږدی کیږي چې په یقین سره فحش فعل او بده لار ده. (د لاسرا سوری ۳۲ ایت) او هم (ولاتقربو افواحش ما ظهر منها و ما بطن = او مه نژدی کیږي فحش کارونو ته که هغه پټ وی که ښکارد (النعام سوری ۱۵۱ آیت) او ذغه راز د لوی ذات قول (انکم لتاتون الرجال شهوة من دون نساء - بل انتم قوم مسرفون = تاسو

نارینه وته په شهوت وروړاندی کیږی نه ښځو ته تا سو په واقعیت کی تیری کونکی قوم یاستی (د الاعراف سری ۸۱ ایت) په همدی باب رسولا کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: بی له شکه هغه ډیر ویروونکی شی چی د امتیانو په باب می دویری سبب ده د لوط د قوم عمل دی (ابن ماجه او بیهقی له جابر بن عبدالله څخه رویات کړیده)

د غه راز د گناله منابعو څخه لری کیدل د صحت د وقایی په عواملو کی راځی لکه څنگه چی لوی خدای «ج» فرمایی (وذروا ظاهرالاثم و باطنه= ترک وهی او خوشی کړی ظاهری او باطنی گناوی. (د النعام سوری ۱۲۰ آیت) د (اثم) کلمه لکه ځنگ چی اروانباد رشید رضا په خپل تفسیر کی وایی هر هغه شی احتوا کوی چی په هغه کی نفس، مال او نور هر څه ته ضرروی او لهعتیولو سخت یی تولنیز ضررونه او مفاسد دی او د اثم (گناه) له جملی څخه دی. د مسکراتو او نشه یی موادو اسعمال او د هر غه څه استعمال چه د عقل د تخدیر سبب گرځی. لکه څنگه چی لوی خدای عزوجل اعلام کړیدی (یسألونک عن الخمر والبمسر قل فیها اثم کبیر = له تا څخه پوښتل کیږی د شرابو او قمار په باب: ووایته چی په دی دواړو کی سستر د گناه ده (د ابقره سوری ۲۱۹ ایت) او هم فرمایی (انما) الخمرو ولبمسرو الانصاب و الا زلام رجیس من عمل اشیطن فاجتنبوه= هر آیینه

او قمار او د پرستش لپاره د رول شوی ډبری او د استشذان تیرونه پلید دی، د شیطان عملونه دی نو ډډه وکړی له هغو څخه (د المائده سوری ۹۳ آیت) په اجتناب کولو باندی امر د تحریم لوړه مرتبه ده او پیغمبر علیه السلام هر مست کونکی شی او نشه آوره شیان نهی کړیدی (له ام سلمه څخه د احمد او ابو داود په روایت) او هم یی اعلام کړیدی: خبر اوسی چی هر نشه آوره څیز حرام دی او هغه څه چی د عقل د زائل کیدو سبب گرځی حرام دی (له اغنس بن حذیفه څخه د ابو نعیم روایات) او هم به ساری ناروغیو باندی له اخته کسانو سره د تماس او د ځانگړو واکسینونو تطبیق د زیاتو ساری ناروغیو د وقایی اسباب بلل کیږی.

باید له زیانونو څخه د وقایی اسباب په کارو اچول شی د غه تدبیرونه په اصل کی د پیغمبر علیه السلام په ارشاداتو کی نغښتی دی. هر کله چی د سفر په وخت کی د خوب لپاره په کوم ځای کی تم شوی له لاری څخه څنگ ته شی چی د شپی لخوا د ځارویو او حشراتو د تیرویدو لاری دی. (له ابی هیرریه څخه د مسلم په روایات) څوک چی خپلی بستری ته ځی باید هغه وڅنډی ځکه نه پوهیږی چی څه څه شیان به پکی ځای نیولی وی. (له ابی هریره څخه متفق علیه روایت) کله چی بیده کیدی څراغونه خاموشه کړی او دروازی وتړی د اوبو د لوښو سرونه پټ کړی او د خوړو د لوښو سرونه خلاص مه پریږدی (له جابر څخه د بخاری روایت) په

يقين سره چي اور ستاسو دښمن دی. کله چي بیده کیدی هغه مړ کړی (له ابی موسی څخه متفق علیه روایت) څوک چي په بی د یواله بام بیده کیږی پخپله به د خپل ځان ذمه وار وی او نور څوک د هغه ذمه واره نه دی. (له علی بن شیبان څخه د داود په روایت). د غه راز رسول الله صلی الله علیه وسلم په تنهائی سره شبگذرانی او بی ملگری سفر نهی کړیدی (له ابن عمر رضی الله عنه څخه د امام احمد روایت)

که چیری ناروغتیا پیښه شی باید په تداوی یی اقدام وشی ځکه آنحضرت علیه السلام فرمایلی دی: تداوی وکړی چي لوی خدای عزوجل هیڅ ناروغی بی شفانه ده پیدا کړی (له اسامه بن شریک څخه د امام بخاری روایت)

**۲ - د کورنی غړو ته ضرر رسول:**

پلار مور، اولادونه، ښځه او میړه - د اهم د (لاالضرار) له ضرر رسولو څخه د نهی په حکم کی شامل دی ځکه اسلام انسان ته د هغه د مور او پلار په باب توصیه کړیده. لوی خدای سبحانه و تعالی فرمایی (ووصینا النسان بوالدیه حسناً) انسان ته مو د هغه د مور او پلار په باب توصیه کړیده.

د (العنکبوت د سوری ۸ آیت) او هم (و بالوالدین احساناً - او له مور او پلار سره نیکی کوی (د النسا سوری ۳۶ آیت) او پیغمبر علیه السلام به تل نهی کول

دوالدینو د اوامر و ترک وهل، د هغوی آزارول او په غیر استحقاق مطالبه باندی اقدام او د نجونو ژوندی شخول. ( له مغیره بن شعبه څخه د بخاری روایت ) او هم د مغیره بن شعبه په روایت د بخاری حدیث چی آنحضرت علیه السلام وویل: ملعون دی هغه څوک چی خپل مور او پلار آزار کړی او ډیر بد آآزار د خپل مور او پلار د روغتیا ساتنی دوسایلونه تامینول دی.

دغه راز اسلام په مور او پلار باندی د بچیانو یا اولادونو په مقابل کی سپارښتنه کوی. او هم ښځی او میړه ته د متقابلی نیکی توصیه کوی. په تیره بیا میړه باندی ټینگار کوی د خپلی مرمنی په وړاندی نیک سلوک وکړی. لکه څنگ چی پیغمبر علیه الصلاة و السلام د حجت الوداع په خطبه کی وفرمایل: له خپلو ښځو سره ښیگڼی وکړی (له ابی هریره څخه متفق علیه حدیث او هم په یو بل حدیث کی د یتیم او میرمنی په باب توصیه شوی او هم یی ویلی دی:

په یقین سره چی ستا ښځه پرتا حق لری. او اولاد پرتا حق لری. نو د هر حقدار حق ادا کړه. **(له عبدالله بن عمر څخه متفق علیه حدیث)** ، دغه راز ارشاد یی وکړ. نارینه د خپل کور ساتونکی او د کورنی د غړو مسوول دی، او ښځه د کور ساتونکی او د خپل میړه د بچیانو ساتونکی ده. او د هغو په وړاندی مسوولیت لری. (له عبدالله بن عمر څخه متفق علیه حدیث) نو د مور او پلار ، ښځی او

میرہ او بچیانو پہ حق کی بی پروائی او نارسانی او د هغوی د روغیتا ساتنی پہ کار کی غفلت حرام دی. څکه توانا خدای «ج» فرمایلی (و لا تقتلو اولادکم = او مه وژنی خپل اولاد - د الانعام سوری ۱۵۱ آیت)، (قد خسر الذین قتلو اولادهم سفهاً بغیر علم = پہ ربښتیا سرہ چی زیان وکړ هغو کسانو چی خپل زامن یی ووژل پہ ناپوهی سرد (د الانعام سوری ۱٤۰ آیت)، (لا تضار والدة بولدها و لا مولود لہ بولدہ = نہ دی مور تہ د هغی د اولاد پہ سبب او نہ دی پلار تہ د هغہ د اولاد پہ سبب ضرر ورسول شی (د البقرہ سوری ۲۳۳ آیت) ابن حزم پہ دی آیت باندی د تبصری پہ ترڅ کی وایی هغہ څوک چی دد مور او پلار دہ پہ سبب لہ ضرر څخہ ژغورل شوی هغہ پی لہ شکہ زوی دی (المحلی لسم ټک ۱۰۷ مخ)، (وائتمروا بنیکم بمعروف = او دا اولاد پ باب لہ یو بل سرہ ښہ مشورہ وکړی. (د الطلاق سوری ٦ آیت) ابن منظر پہ دی آیت باندی د تبصری پہ ترڅ کی وایی: او د مور او پلار هر یوو حق دی چی د اولاد پہ باب ښہ مشورہ وکی او د دی خبری معنی د مور او پلار سلا مشورہ دہ. چی د هغی پہ اساس اولاد تہ خیرورسیږی او پیغمبر علیہ الصلاة والسلام پہ دی ارتباط فرمایلی دی یو شخص تہ همدمرہ گناہ بس دہ چی خپل نفقہ خوړونکی تباہ کړی. لہ عبداللہ بن عمر څخہ د ابو داود پہ روایت)، (زمونږ لہ ډلی څخہ نہ دی هغہ څوک چی زمونږ پہ ماشومانو او

کوچنیانو رحم نه کی ) له خپل پلار او نیکه څخه د عمر او بن شعیب له قوله بخاری او ابو داود او ترمذیی په روایت ) د رحمت یوه ډیره څرګنده نمونه د اولاد روغیتا ساتنه او د ناروغیو په وړاندی د هغو وقایه ده. دغه راز د ماشوم د روغتیا ساتنی ډیره ښه لار په لومړیو دوو کلونو کی د مور په شیدو باندی د هغه تغذیه ده. چی د مور په شیدو باندی د ماشوم تغذیه ما شوم ته مقاومت ورکوی. د هغه تندرستی تضمینوی، او د شیدی خوړلو د دوه کلنی مودی بشپړیدل په توګه د دی سبب ګرځی چی مور په دی موده کی حامله نشی. او لوی خدای تبارک و تعالی فرمایی (والوالدات یرضعن او لادهن حولین کاملین لمن اراد ان یتم الرضاعة= او میندی شیدی ورکوی خپل ماشومانو ته پوره دوه کاله، دا موده هغه چا لره ده چی وغواړی د شیدی خوړلو دوران بشپړ کړی - د البقره سوری ۲۳۳ ایت) (وفصاله فی عامین = او د مور له شیدو څخه د ماشوم جلا کول د دوو کلونو مودی په بشپړولو سره ده - د لقمان سوری ۲٤ آیت) او باید پوه شو چی ډیر ښه بیعت چی پیغمبر صلی تالله علیه وسلم له ښځو څخه غوښتی دی دادی چی هغوی خپل بچیان ونه وژنی د المحتنه سوری ۱۲ آیت)

نو په دی اساس د خپلی کورنی د افراد و په باب هر ښځی باندی لازمه ده چی: د کورنی د افرادو د روغیتا ساتنی سببونه ولټوی او هغوی د ناروغیو د خپریدو له

عواملو څخه لري وساتي. او د لزوم به وخت کی هغوی واکسین کړی چی په دی باب غفلت او تنبلی د هلاکت سبب گرځی . او لوی خدای «ج» فرمایی (قد خسر الذین قتلوا او لادهم سفها بغیر علم = په یقین سره چی زیان وکړ هغو کسانو چی خپل بچیان یی د ناپوهی له امله ووژل (د الانعام سورۍ ۱٤۰ آیت) د کورنی د غړو ښی تغذیهیی ته پام لرنه وکړی او هغوی په خوراک و څښاک کی اعتدال ته وهڅوی او د روغتیا ساتنی لپاره یی ځینو گټورو ورزشونو ته وهڅوی.

که چیری ناروغه شی د هغوی په درمان (تداوی) لاس پوری کړی.

او پته نه دده چی د بی وسیلی ماشوم لپاره ډیره سخت خطر د هغه د مور یا پلار د سگرت څکولو عمل دی. چی ماشوم د سگرت د لوړی په جبری تنفس کولو اخته کیږی چی د هغه له امله په بیلا بیلو ناروغیو اخته کیږی. دا مضاعفه گناه ده چی یوه یی د بچیانو په صحی وقایی کی بی پروائی او بله یی په جبری توگ له خطر سره د هغو مخامخ کول دی، په داسی حال کی چی بیچاره ماشوم بی وسه دد.

**۳ – تولو خلکو ته ضرر رسول:**

تولو او په تیره بیا گاونډی ته د ضرر رسول حرام دی لکه څنگه چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم وایی: منع دی چی لومړی چا ته ضرر ورسول شی او یا دچاله

علیــه وسلم د لوی خــدای په لور دور بلونکی او خلکو ته د لوی خــدای دور پیــژندونکی او د لوی خــدای «ج» د رحم او خــشم دلارو د بیــانونکی په توگــه مبعوث شوی دی... خو جسمانی طب د هغه د شریعت د بشپړتیا نتیجه او لغیرد مقصود دی ... »

د طب په دی برخه یعنی د معالجی په برخه کی باید پوه شو چی پیغمبر علیه الصلاة والسلام) د تداونی اساسات تثبیت کړی او د هغو امریی کړی لکه څنگه چی په صحیح حدیث کی ابی داود له اسامه ابن شریک څخه به روایت کی ویلی دی چی (په تداوی لاس پوری کړی) او د ترمذی په روایت (بلی، ای د لوی خدای بندگانو په تداوی لاس پوری کړی) آنحضرت (علیه الصلاة والسلام) په خپلو مبارکو فرمایشونو سرد د ناروغانو پرمخ د شفا د هیلو دروازی پرانستلی لکه خنگ چی په بل حدیث کی له (ابی هریره) څخه امام بخاری رواېت کړی فرمایلی یی دی: (لوی خدای هیڅ ناروغی نه ده را استولی ترڅو یی د هغی شفانه وی را استولی) او طبیبان یی د دوا لټولو او دغی دواته د لاس بری لپارد د علمی څېړنو پر مخ بیولو ته هڅولی دی لکه څنگه چی د مروی مسلم او له (جابر) څخه د احمد په حدیث کی ویل شوی دی (د هر درد لپاره دواشتــه او کله چی دواله درد سرد برابره شی ناروغ د خدای په امر روغیږی) او له امام احمد څخه په یو بل روایت کی

خوا د رسیدلی ضرر په مقابل کی د ضرر په رسولو اقدام وشی او په بلی تبصری سره وپل شوی وی چی ضرر رسول هم په فردی او هم په مشترکه توگه نا روا ده. (د ابن ماجه مروی حدیث او له ابی حرمه څخه د ابی داود حدیث) دغه راز آنحضرت وفرمایل قسم په لوی خدای ایمان یی نه دی رواړی. وپوښتل شول څوک دغه زیانمن شوی ای د خدای پیغمبره؟ وی فرمایل هغه څوک چی گاونډی یی له شر څخه په امان نه وی - (له ابی هریره څخه متفق علیه) او هم حضرت پیغمبر وفرمایل: دا چی خلکو ته له ضرر رسولو څخه ډډه وکړی دا پخپله صدقه ده. (له ابی ذر څخه متفق علیه روایت).

دلته د اذیت موضوع رامنځ ته کیږی زیات شمیر خلک اذیت د ضرر رسولو په معنی استعمالوی او دا سمه نه ده ځکه اذیت د آزار ډیره ټیټه درجه ده چی د خوابدی او زړه بد والی سبب گرځی کله چی د آزار دغه اندازه منع وی په لومړی درجه ضرر حتماً حرام بلل کیږی او لوی خدای سبحانه فرمایی (و الذین یوعوذن المونین و المومنات بغیر ماکتسبو فقد اجتملوا بهتاناً واثما نسبتاً= او هغه کسان چی اذیت کوی بیگناه مسلمان نارینه او مسلمانی ښځی د بهتان په تهمت او پیغمبر علیه السلام فرمایی هر څوک چی په خدای او د قیامت په ورځ ایمان ولری باید خپل گاوندی آزار نکړی ( له ابی هریره څخه متفق علیه په همدی ډول

مسلمان ته روا نه ده چی په سر ترلی بیری که په موټر یا الوتکه کی یا په غرفه کی سگرټ وڅکوی او خپل شاوخوا خلک دد غه خبیث دود له خطر سره مخامخ کړی. د سگرټو څکول که انسان یوازی هم وی جوازنه لری چی ځان د ناروغی او تباهی له سبب سره مخامخ کړی. څه دا چی خپل شاوخوا خلک زیانمن کړی. نو هغه څوک چی په الوتکه کی له دد سره په یوه څوکی ناست دی یا په عمومی ځایونو یا کورکی ورسره دی دده نژدی گاونډیان بلل کیږی او لوی خدای د نساء په سورد کی امر کړیدی چی گاونډی که نژد گاونډی وی که لری، ملگری او همکار سره باید نیکی او احسان وشی او دا چی د سگرټو څکول له ځانه سره خطرونه لری په هیڅ ډول له دغه شان ملگرو اوهم نشینانو سره د احسان به مفهوم نه دی. په همدی ډول د کورمخی ته د فضله او بیکاره شیانو اچول چی د گاونډیو او لارویو د زیان او اذیت سبب گرځی او پیغمبر علیه الصلاة والسلام فرمایلی دی څوک چی لارویو ته د هغو د لاری په سر د اذیت اسباب برابر کړی، د لعنت او نفرین مستوجب گرځی (طبرانی حدیث) سر بیره پر دی آنحضرت صلی الله علیه وسلم د اشخاصو دصت او سلامت د ساتلو لپاره زیات ټینگار کړیدی د مثال په ډول یی ویلی دی: هرڅوک چی زمونږ له جوماتو او بازارونو څخه تیریږی او غشی ورسره وی باید د خپلو غشو سرونه په لاسونو محکم ونیسی چی مبادا پر

کوم مسلمان ونه لګړی (له ابی موسی څخه متفق علیه ) او هم د ناروغی د خپریدو موضوع په ضرر او ضرار کی شاملیږی، نو مسلمانانو ته روانه ده چی اجازه ورکړی، ناروغی یی وروړته ورتیره شی. او یا د خپلی ناروغی په وقایع کی سستی وکړی. یا په ټولنه کی د نارووغی د خپریدو عوامل برابر کړی ان د پیغمبر علیه السلام دا فرموده چی (لا عدوی و لا طیره - د مروی بخاری حدیث له عبدالله بن عمر او انس بن مالک څخه) انسان ته دا فکر پیدا کوی چی د پیغمبر اکرم علیه السلام هدف د ناروغی د خپریدو نهی ده. د غه راز د حدیث بل جز له بد شګون څخه نهی ده لکه څنګه چی له بل حدیث څخه پوهیدلی شی (لا طیراً و خیرها الفال - متفق علیه حدیث ) چی د (لا ) توری (حرف ) د نفی لپاره نه دی د هغوی د دی وینا په دلیل (وخیرها الفال ) چی وایی نیک فال شته، او دلته د نهی لپاره دی. او کله چی د دغه نبوی حدیث یو تن اوریدونکی د سرایت د نفی مفهوم ورڅخه واخست، وی ویل که چیری د اوښانو په ګله کی یو اوښ د لیوه په ناروغی اخته شی نور اوښان هم د لیوانو په شان کیږی پیغمبر علیه السلام له دی ویری چی دغه شخص او نور کسان به اسباب له لوی خدای څخه بغیر منسوب کړی وی فرمایل دا د لوی خدای تقدیر د ه چی لومړی اوښ یی د لیوه په ناروغی اخته کړی دی؟ آنحضرت په دی ډول د فهم خطا تصحیح کړه، دغه راز د عوذ دا اغیزی په

باب یعنی په اصطلاح د دم او دعا په باب او له ناروغی څخه د وقایی ، د هغی د تداوی او تدبیر ارشاد یی وکړ چی تأثیر یی الهی تقدیر دی (له ابی حزامه څخه د ترمذی په روایت) او د همدی حدیث د مضمون په شان د عمر بن خطاب رضی الله تعالی عنه وینا ده کله چی د طاعون په ناروغی اخته سیمی ته یی له ورتگ څخه ډډه وکړه. او ابو عبیده وویل: آیا د خدای له تقدیر څخه تښتی؟ په ځواب کی یی وویل: هو! د خدای له تقدیر څخه د خدای د تقدیر په لور تښتم. د عمر رضی الله تعالی عنه د غه خبره د اسلام په باب د هغه د ژور درک زیرنده ده په داسی حال کی چی له دی مخکی یی کوم نبوی حدیث په دی باب نه واوریدلی. او هغه دا چی پیغمبر علیه السلام فرمایلی کله چی په کوم ځای کی د طاعون د ناروغی له وجود څخه خبر شوی هغه ځای ته مه داخلیږی او که چیری ستاسو د استوگنی په ځای کی طاعون پیدا شو له هغه ځای څخه بهر ته مځی (له اسامه بن زید څخه د بخاری په روایت) نو د غورور خبره دا ده چی انسان پوه شی د ناروغی خپریدل (سرایت) د خدای «ج» تقدیر دی او د هغه په مقابل کی مبارزه هم د لوی خدای تقدیر دی. لکه څنگه چی ناروغی د خدای د قضأ و قدر په اساس ده د هغه تداوی او وقایه هم الهی تقدیر دی. ټول د غه مطالب په دی جامع حدیث کی راغلی دی (الا اجزکم با المومن؟ من آمنه الناس علی اموالهم و انفسهم و المسلم من سلمه النسا من لسانه

و يده ... = آيا تاسو ته خبر درکړم د يو مومن شخص په باب؟ مومن هغه څوک دی چی خلک هغه د خپل سر او مال په باب امين وبولی او مسلمان هغه دی چی خلک يی له ژبی او لاس څخه په سلامت وی. (د احمد مروی حديث له فضاله بن عبيد څخه)

****

٤

# د ټولنې اشتراك

د ټولنې یا مجتمع اشتراک په خپل ذات کې د روغتیایي رعایت په چلند کې مهمه مبدأ بلل کیږي، داسې چلند او لاره چاره چې د نړۍ روغتیایي سازمان نن خلک هغې ته رابولي خو د ربښتني اسلامي ټولنې او نورو ټولنو د موضوع ترمنځ څرګند اختلاف شته او له همدې امله موضوع د یو څه تفصیل وړ ده. ځکه د اسلامي مفهوم له نظره د ټولنې اشتراک به خوستنو یا پایو ولاړ دی چې له ټولو څخه مهم یې، پیوستون، همکاري، ذاتي کفایت (خود کفائي) او احسان (نیکي)

**۱ – پیوستون:**

لکه څنګ چې معلومه ده ودانې او ساختمان هغه وخت منځ ته راتللی شي چې ټول اعضأ یې په بشپړ ډول توګه سره وتړل شي. دغه شان ټولنه هم هغه وخت جوړېدی شي چې افراد یې په مجموع کې یو واحد فرد ته لوړ شوي وي د دې خبرې

مقصد دا نه دی چی افراد په بتی کی ویلی شی بلکه هدف د افرادو پیوستون دی.

د بسنټ د پیوستون په شان، دغه راز چی د پیغمبر علیه السلام په تعبیر کی راغلی دی «مسلمان د مسلمان لپاره د بنسټ په توگه ده چی اعضأ یوټی یو بل کلک سره نیسی». د حدیث روایت کونکی وایی چی آن حضرت دذی خبری کولو په وخت کی خپلی کوتی سره ووپییلی (له ابی موسی څخ متفق علیه) قرطبی وایبی: له دی امله نه تمامیری او گټه ورڅخه نه تر لاسه کیږی مگر هغه وخت چی اعضأ یو بل کلک سره ونیسی او یو بل پیاوړی کړی. دغه شان پیوستون له یگانگی او دزړونو له مینی پرته نه تر سره کیږی. د زړونو مینه او یووالی د مقدس ځیز له ځواک څخه گټه اخستنه ده لکه څنگه چی خدای «ج» ویلی دی (و الف بین قلوبهم لوالفقت مافی الارض جمیعاً ما الفت بین قلوبهم و لکن الله الف بینهم = لوی خدای د هغوی زړو ته سره نژدی او مین کړل که تا ټول هغه څه چی په ځمکه کی وی مصرف کړی وای نشوای دی کولی د هغوی ترمنځ الفت راولی، خولوی خدای د هغوی ترمنځ الفت واچاوو د الانفال سوری ٦٣ آیت)ة

په همدی اساس پیغمبر علیه السلام په یوه بله تشبه کی د مسلمانانو د اجتماع په باب ویلی دی: له یو بل سره په پیوستون، مهربانی او زړه سوی کی د مسلمانانو د تمثیل شکل د یو وجود به شان ده چی که د هغه یو غړی ته آزار او

اذیت ورسیږي نور غړي هم ورسره نارامه او ورته کیږي (د نعمان بن بشیر په روایت متفق علیه روایت) - دا څرګند حقیقت دی چې د بدن غړي له یو بل څخه جلا او انفرادي ژوند نشي کولی څکه په داسي حالت کې مړه کیږي، د سلولونو او غړو روندي پاتې کیدل په دې ارتباط دي چې هغوی د یو واحد جسم په توګه ګرځوي - په دې حدیث شریف کې د پیوستون د څواک لوري ته یوه لطیفه اشاره ده چې له هغوی څخه (د تفاعل) په صیغی سره تعبیر شوی دی: تواد، تراحم، تعاطف په دې معنی ده چې په هر یوه باندي بل ګران وی، مهربانه وی او زړه سوی ولري.

که چیري د تماسک یا پیوستون له معاصر اصطلاح څخه تیر شو ښکلی او دقیق اسلامي لفظ لرو چې (ذات البین) دی. قرطبی رحمه وایي: ذات البین یعنی هغه حالت چې په هغه باندي اجتماع شوی ده او رشید رضا د المنار په تفسیر کې ویلي دي (د بین کلمه په اصل لغت کې په اتصال او افتراق او هم په هر هغه څه چې دده او اړخونو ترمنځ وي اطلاق کیږي لکه څنګ چې خدای «ج» وايي (لقد تقطع بینکم = په یقین سره هغه څه چې ستاسو ترمنځ وو قطع شوی دی)، د غه رابطه په ذات البین تعبیروي او مونږ د کتاب الله د ارشاد او د نبوي سنت پر اساس د ذات البین په اصلاح مامور شوي یو. نو دا شرعاً واجب عمل دی، چې د

اسلامي امت قووت او عزت ورباندي ولاړ دي او د هغوي د وحدت د ساتني سبب دي. له همدي امله پيغمبر عليه السلام فرمايلي دي آيا تاسو ته خبر در نکم له لمانځه، روزي او صدقي څخه لوړي درجي ته ؟ وي وي خبر موکړه ! آنحضرت وفرمايل د ذات البين اصلاح او بيا يي وويل او ذات البين فساد چي تباه کونکي دي (بخاري له ابي دردا څخه دالادب المفرد په کتاب کي) د اسلام مقدس دين دغه پيوستون د بقا لپاره مهم تضمين مقرر کړيدي چي هغه د جماعت لمونځ دد چي دلته د جماعت د لمانځه د صتمبت په باب او له دي کار څخه د سر غړونکو د سخت توبيخ په باب خبري نه کوم خو غواړم ووايم چي د جماعت په لمانځه کي يادونه او اندرز پروت دي چي په يود شپه او ورځ کي پنځه ځلي په تکرار ټولني ته د شخص انتسباب آفاده کوي او هم غواړم ووايم چي د جماعت به لمانځه کي د امام دهري ورځي لاربښووني او يادوني هم عين شي دي چي د ټولني يا مجتمع د ټولو شئونو په باب يي يادونه مطلوب او مقصود دد.

د جماعت په لمانځه کي په صف کي په مستقيم او برابر دريدو باندي امر دي، لکه څنګه چي په دي حديث کي : خپل صفونه سيخ او برابر کړي چي د صفونو برابر والي د لمانځه تماميت دي. (له انس رضي الله عنه څخه متفق عليه روايت) او د جماعت په لمانځه کي د استقامت د نشتوالي او د صفونو اختلاف منع شوي

دی او هغه د زړنو د اختلاف سبب بلل شوی دی. (له عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه څخه د مروی مسلم حدیث) او د جماعت په لمانځه کی د صفونو په اتصال امر شوی دی. (مروی نسائی حدیث له انس بن مالک رضی الله تعالی عنه) او په هغه کی اوږه په اوږه ولاړی سره د صفونو جوړول، د صفونو ترمنځ د خالی ځایونو پټول او د صفونو د سمولو په مقصد د مخکی وروسته کیدو په وخت کی د لاسو په نرموالی امر شوی دی. او ټینګار شوی دی چی په صفونو کی د شیطان د ځای نیولو لپاره خالی ځای پاتی نشی (د ابوداود حدیث د ابن عمر رضی الله تعالی عنه به روایت) او هم حضرت پیغمبر علیه السلام فرمایلی دی هر څوک چی صفونه سره سم کړی لوی خدای هغوی سره وصل کوی. له عبدالله بن عمر څخه نسائی حدیث) او آنحضرت ویلی دی هغه څوک چی د صف ترشاد لمونځ کوی لمونځ یی لمونځ نه دی (له علی بن شیبان څخه د ابن ماجه روایت) دغه راز د اهم څرګنده د ه چی د جماعت لمونځ د مسلمان لپاره د انضباط، بنی اداری او تدبیر زده کړه ورکوی او په عین وخت کی چی مقتدیان د امام په پیروی مقیدوی امام له هغوی سره د رفق په رعایت کی هڅه کوی او د هغوی د ډیر کمزوری حالت په پام کی نیسی، لکه څنګه چی په دی باب رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: امام تخفیف راولی څکه د هغه ترشاه زاړه، ناتوانه ناروغ او

داسی ویل شوی دی: (لوی خدای هر ناروغ ته شفا را واستوله هغه څوک پوه شو چی هغه یی و پیژندله او هغه څوک پوه نشو چی هغه یی و نه پیژندله)

او هم د تداوی په دی برخه کی د پام وړ دا ده چی د اسلام پیغمبر علیه الصلاة والسلام و تداوی مسئله خلکو ته په سمه توگه بیان کړه کله چی آنحضرت «ص» ته وویل شول (له ابی خزیمه څه د مروی ترمذی په حدیث کی) د عوذه په باب (په اصطلاح دم دعا) چی ویی کړو او په دوا درملو لاس پوری کړو او که خذر او پرهیز وکړو تاسو مبارک څه فرمایی: آیا د الهی تقدیر کوم څه ردوی؟ رسول الله علیه الصلاة و السلام وفرمایل د هغو اغیزی هم الهی تقدیر دی، په دی ډول آنحضرت صلی الله علیه وسلم روښانه کړه چی د لوی خدای «ج» تقدیر هم د لوی خدای «ج» په تقدیر دفع کیږی او هیڅ شی له تقدیر څخه بهر نه دی نو په اسلام کی تنبلی او د توکل په نامه تکیه کول ځای نه لری. مسلمان مکلف دی د لوی خدای تقدیر د هغه ذات په تقدیر سره دفع کړی او هغه وخت د کار د نتیجی لپاره په لوی خدای توکل وکړی. او د تداوی په برخه کی د پام وړ خبره دا ده چی آنحضرت صلی الله علیه وسلم په ملاحظی، تجربی اسباب او مسبباتو پوری وابسته طبابت ته ارزښت ورکړی او هغه څه یی باطل وگرځول چی په جاهلیت کی د ظاهری سببونو د ترکولو او په پټو اسبابو باندی په تکیه ولاړ وو او د سحر او افسون او غیر

ضرورت مندان ولاړ دي او مقتدي له خپل وروړ سره د صفونو په جوړولو کې مرسته کوي او پام ساتي چې په تکبیر، رکوع او سجده او د لمانځه په نورو فعلونو کې له امام څخه مخکې نه شي.

د مسلمانانو ترمنځ د تماسک او پیوستون دوهم ضمانت مشوره ده چې لوی خدای خپل پیغمبر ته وربانده مامور کیږدي: (و شاورهم في الامر - الایه د آل عمران سورې ۱۵۹ ایت) او شورا یې د اسلامي ټولنې له ممیزاتو څخه بللې ده (و امرهم شورا بینهم الایه د شورا سورې ۳۸ آیت) او ښځې میړه ته یې د هغوی د شیدي خوړونکې ماشوم په باب فرمایلي دي (و اتمر و ابینکم بمعروف - د الطارق سورې ٦ ایت)

دغه شورا باید په ټولو برخو کې تحقق ومومي له کورني تر ټولنې پورې او په بیلابیلو چارو کې.

## ۲ - همکاري او مددگاري:

پیغمبر اکرم علیه السلام وایي ډیر ښه خلک خلکو ته گټه رسوونکي خلک دي. دغه ایت شریف چې دار قطني او ځینو نورو محدثینو روایت کړیدی د ثمبت اړخ ښودونکی او د مصالحو د جلب ښکارندوی دی. او د نبوي بل حدیث په شان په دې معنی دی: چې ستاسو ډیر بهتر خلکو ته ډیر گټه رسوونکي دي. (د ابن ابي

الدنیـا او ابن عسـاکـر روایت) ، نو ایجابوی او غـوښتنه کوی کـه مسلمـان خپـل مسلمـان ورور ته گتیه ورسوی او د خپـل وس په اندازه دهغه د گټی په کـار کی هڅه وکـړی. او اسـلام اجـازه نه ورکـوی چی مسلمـان منفی باف او بی پروا وی او د اسلامی ټولنی د افرادو د مصلحت لپـاره پام لرنه ونه لری څکه په دی صورت کی له اسلامی ټولنی سره خپـل انتسـاب له لاسه ورکوی. د غه رکن د اسلامی وروری پر مفـهوم ولاړ دی چی قرآن کریم هغه په دی ډول بیانوی: (انما المومنون اخوة= بی له شکه مسلمـانان سره ورونه دی (د الحجر سوری ۱۰ آیت) او د اسلام پیغمبر علیه الصلاة والسـلام د د غه شریف نص په توضیح کی وایی : بشپړ ایمـان نه لری ستاسو څخه هیڅ یو ، تر هغه وخته پوری چی خوښ کړی هغه شی خپـل ورور ته چی خوښـوی یی خپـل څـان ته (له انس بن مـالک رضی الله عنه څخـه متـفق علیه روایت) او هم یی ویلی دی: مسلمـان د مسلمان ورور دی، نه پر هغه ظلم کـوی او نه له هغه څخه مرسته او همکاری سپموی. (له ابی هیریرد څخه د مسلم روایت) ، له دی امله روا نه د د مسلمـان ته چی په ټولنه کی یو سړی د بدی او زیان په درشل کی ووینی او هغه ته مرستی او همکاری لاس ور اوږد نکړی.

په اسـلام کی د دغی مرستی او همکاری د بقـا او د هغی د سـاتنی لپـاره مـهم ضمـانت وجود لری چی پـه بل هیڅ نظام کی نشته د غه مهم ضمـانت د فرض کفائی

په نامه یادیږی. هر هغه څه چی په تحقق کی یی د اسلامی ټولنی خیر او ګټه وی کفائی فرض ګڼل کیږی یعنی هغه عمومی یا د ټولو فریضه دد. خو که چیری د ټولنی ځینی افراد د هغه په اجرا کولو اقدام وکی د نورو تکلیف پکی ضروری نه دی. خو ضمانت په دی کی دی که هیڅا په هغه لاس پوری نکړ ټول ګناهکار بلل کیږی.

له همدی سببه باید هر فرد کفائی فرض له نورو مخکی خپل ځان ته متوجه وبولی. او په سر ته رسولو کیی هڅه وکوی چی د لوی خدای دا فرمود د:
(فاستبقوا الخیرات د خیر په کارکی له نورو څخه مخکی شی - د البقره سوری ۱٤۸ آیت) عملی شوی وی) او د پیغمبر علیه السلام ارشاد په نیکو عملونو اقدام وکړی (له ابی هریرد څخه د مسلم په روایت) تطبیق شوی وی.

عز ابن عبدالسلام پر ځینو اشخاصو باندی د ځینو نورو د حقوقو په باب د وینا په ترڅ کی وایی د دغو حقوقو ضابطه داده چی د هر مصلحت او ګټی جلب واجب او مستحب او د هر مفسده او زیان دفع حرام او مکروح دد او دغه حقوق په فرض عین، فرض کفائی او سنت عین او سنت کفائی باندی ویشل کیږدی، او اسلامی شریعت ور څخه ډک دی. او به دی ټولو باندی دغه مبارک آیت دلالت لری (و تعاونو علی البرو التقوی و لا تعاونوا علی الاثم و العدوان = مرسته او همکاری

وکړی پر نیکی او پرهیزگاری او له یو بل سره په گناه او تیری کی همکاری مکوی – (المائده سوری ۲ آیت) دغه نهی د مفاسدو لپاره د کیدو په سبب اوامر د مصالحو د تحصیل لپاره د کیدو په سبب ده.

او هم د لوی خدای په فرموده: (ان الله یأمرو بالعدل و الاحسان و ایتاء ذی القربا د النحل سوری ۹۰ آیت)، پر مصالحو او دهغه پر اسبابو امر (و ینهی عن الفحشاء والمنکر والبغی – د النحل سوری ۹۰ آیت) د مفاسدو او د هغو له سببونو څخه نهی ده.

**۳ – خود کفائی یا له ځانه پوره والی:**

د خود کفائی او له ځانه پوره والی څخه هدف داد ی چی اسلامی ټولنه د پرمختگ په حال کی سالمه پاتی شی لکه څنگه چی لوی خدای غزوجل د هغه مثال په انجیل کی داسی بیان کړیدی: کزرع اخرج شطاه خآزره فاستعظ فاستوی علی سوقه یعجب الزراع = لکه د کروندی په شان چی نازکی ځانگی وکړی، بیا پیاوړی شی او بیا کلکی او سیخی پر خپلی ډنډی ودریږی او کروند گرحیران کړی – د الفتح سوری ۲۹ ایت) د اسلامی ټولنی هر فرد د نوی زرغونی شوی ځانگی به شان دی چی له ډندی څخه جلا شوی وی. او د ټولنی په پیاوړ تیاکی برخه اخلی او ددی څواکمن کیدو په نتیجه کی ټولنه تینگه پخبلو پښو ولاړه او حیرانونکی

گرځي.

اصل دا دی چې هر فـرد باید د امکان په اندازه د اسـلامي تولني په ځـواکـمن کیدو کې برخه واخلي لکه څنگه چې پیغمبر علهی اسلام وایی مسلمان پخپل لاس کار کوي هم خپله ورڅخه گټه اخلي او هم یي نورو ته صـدقـه کوي. (له ابی موسی څخه متفق علیه روایت)

بیـا داچې د یو تـن خـوراک ددوو تنو لپـاره بس دی او ددوو تنو خـوراک څلورو ته او د څلور تنو خوراک اتو تنو ته کفایت کوي (د مروی مسلم حدیث له جابر څخه) سر بیره پر دی د اضـافی مرکب او اضـافی توشی او آزوقی په باب او نورو اضـافی شیـانو په باب د پیـغمبر علیـه السـلام اوامر وارد دی چې باید د محتاجو خلکو په واک کې ور کړ شي. (له ابی سعید خدری څخه د مروی مسلم د حدیث مضمون) حضرت پیغمبر علیه اسلام د اشعری قبیلی عمل چې د آذوقی د قلت پـه وخت کې یې هر څـه چې لرل یو ځای کـول بیـایې په برابره توگـه ویشـل، ستـایلی او ویلی دي: هغوي په دې عـمل سـره زمـا دی روزه د هغـو یـم - له ابی موسی اشعری څخه متفق علیه روایت) ، اسلام امر کوي چې مسلمان باید د خپل معیشت دوجې په تامین کې هڅه وکړي. لوی خدای تبـارک و تعـالی فرمـایي (و ابتغوا من فضل الله = او د خدای له فضل څخه د رزق غوښتنه وکړي - د الجمعه

سوری ۱۰ آیت)

اسلام بنده هڅوی چې د کار له لاردی ځان ته نغذی در آمد ولری چې وکړی شي له نورو څخه له غوښتنې پرته په عزت سره ژوند وکړی او پیغمبر علیه السلام وایي او دا چې یو شخص په خپلی وسی سره لرګی په شاراوړی او خرڅ یې کړی او په دی ډول لوی خدای دده آبرو او عزت وساتي ښه ده له دی چې له خلکو څخه یې په ګدایي وغواړی، وریې کړی او که نه (بخاری د زبیر العوام په روایت) او هم یې فرمایلي دی هیڅ دا خپل لاس له کار څخه بهتر خواړه نه دی خوړلي او د لوی خدای «ج» پیغمبر د اود ع د خپل لاس له کار څخه خواړه برابرول. (بخاری له مقدام بن معدیکرب څخه په روایت) او په دی ډول یو د بهتر د تولنه جوړیږی چې پیغمبر علیه السلام د هغی په باب ویلی دی: پاسنی لاس له کوز لاس څخه بهتر د د (له عبدالله بن عمر څخه د بخاری روایت)

دغه راز باید پوه شو چې اسلام د مال د ضایع کولو او اسراف اجازه نه ورکوی لوی خدای «ج» فرمایي: او لاس په غاړه کی تړلی مه ساته او نه یې بیخی خلاص ساته دا د اسراء سوری ۲۹ آیت) او هم د خپلو صالحو بندګانو ستاینه کوی کوم چې په لګښت وکی اسراف نه کی او بخل هم نه کوی. (د الفرقان سوری ٦٧ آیت) او فرمایي چې اسراف مه کوی. لوی خدای اسراف کوونکی نه خوښوی (د الانعام

سوری ۱٤۱ آیت) پیغمبر علیه السلام آن د اودس په اوبو کی په اقتصاد کولو امر کوی.

**٤ - نیک کارونه او احسان:**

اسلام په سالمه توگه د اسلامی ټولنی د ساتلو لپاره ضمانتونه وضع کړیدی چی له ټولو څخه مهم یی څلور دی: اصلاح، روا عمل، صدقه او احسان. لومړی دری مورد د په دی مبارک آیت کی بیان شوی (لا خیر فی کثیر من نجواهم الا من امر بصدقته او معروف او اصلاح بین الناس = د هغوی په زیاتو پټو خبرو او رازونو کی خیر نشته خو د چا هغه پټی خبری چی په صدقه یا روا عمل یا د خلکو ترمنځ د اصلاح امروی (النسا سوری ۱۱٤ آیت) څلورم د پیغمبر علیه السلام په حدیث کی د ده چی ارشاد یی کړیدی: لوی خدای مقرره کړیده نیکی په هر څه کی ( د مسلم حدیث د ابی یعلی په روایت) دا هم د متمدنی نړی له حفاظتی تضمینونو څخه دی.

خو صدقه: یو ښکلی نوم دی چی اسلام هغه د اوسنی زمانی (د مدنی چلند) د اصطلاح د تعبیر لپاره یاد (مدنی تصرف) لپاره په کار وی. د دی تعبیر سبب په اسلامی ټولنی پوری د شخص د انتساب پر مصداق د صدقی د نامه د لالت دی چی پیغمبر علیه الصلاة والسلام ویلی دی (صدقه برهان دی) (له ابی مالک

اشعری څخه د مسلم حدیث)

دغه مصداقیت د سلوک یا کړو وړو په زیاتو لارو چارو تحقق مومی چی د سلوک هر دغه طرز د مسلمانانو په ټولنی پوری او د دی ټولنی د سلولونو ترمنځ د پیوستون د اړیکی پ پیاوړ تیا او لرخی اخستنی که په منسوب والی د هر مسلمان شخص د احساس نمایندګی کوی.

اسلام له مسلمانانو څخه غواړی چی کم له کمه په ورځ کی یو کلی په اسلامی ټولنی یا په اصطلاح مدنی تصرف پوری خپل منسوب والی ثابت کړی. په دی ارتباط د دی امت معلم (صلی الله علیه وسلم) فرمایلی دی: ر مسلمان باندی هره ورځ چی لمر را خیږی پخپله پر د باندی د د ه صدقه د ده. (له ابی ذر څخه د امام احمد حدیث)

ډیر خلی اوریدونکی صدقه پر مال پوری منحصر بولی پوښتنه کوی: په داسی حال کی چی مالب مو راک کی نشته څرنګه به صدقه کو. په ځواب کی بایډ په توضیحی تو ګ وو ایو چی د صدقی ډولونه زیات دی څکه د صدقی له ډولونو څخه تکبیر، د سبحان الله، او الحمد الله، او لا الله الا الله، او استغفر الله ویل او په معروف باندی امر او له منکر څخه منع کول صدقه دی: دغه راز له لاری څخه د ازغیو او نورو اذیت رسوونکو شیان لری کول، د کانه اورول او د مظلوم غږ ته

غوړ نهول او له بې وزلو سره همکاري دا ټول له ځان څخه پرځان باندې د صدقې ډولونه بلل کیږي. په ورین تندي باندې د یو شخص یا مسلمان ورور هرکلي هم صدقه ده لکه څنګه چې په سنن الترمذي او د امام بخاري د الادب المفرد په کتاب کې د مروي حدیث په دې باب صراحت لري.

له ابي ذر (رضي الله عنه) څخه په یو بل حدیث کې روایت شوی دی چې له پیغمبر علیه السلام څخه مې وپوښتل ډیر ښه عمل کوم دی؟ انحضرت وفرمایل: په لوی خدای باندې ایمان او د لوی خدای په لاره کې جهاد، ومې پوښتل کومه رقبه ( غلام چې آزاد کړی شي ) ښه دی؟ ویې فرمایل هغه چې لوړه بیه ولري او له خاوند سره د زیات ارزښت وړ وي. ومې ویل که چیرې دا کار مې ونکړ؟ ویې فرمایل له یو کسبګر سره مرسته وکړه او یا له یو کم عقله سړي سره چې د عقل د کمزورتیا په خاطر یو کار په سمه توګ سرته نشي رسولی همکاري وکه، و مې ویل که داسې هم ونکم؟ ویې فرمایل خلکو ته له ژبان او شر رسولو څخه ډډه وکه دا هم ستا لپاره صدقه ده (متفق علیه).

د غه راز په یو بل حدیث کې یې فرمایلي دي چې هره ښه خبره صدقه ده له مسلمان ورور سره مرسته او معاونت صدقه ده، تږي ته د اوبو ورکول هم صدقه ده، د خلکو د لارې له سر څخه د اذیت کونکو شیانو لرې کول صدقه ده د (الادب

المفرد په کتاب کی د بخاری روایت)

*

خو معروف (نیکی) د صدقی هغه برخه دە، لکه څنگ چی پیغمبر علیه السلام فرمایلی دی: هرہ نیکی صدقه دە (له جابر څخه د بخاری او له حذیفه څخه د مسلم په روایت) د پیغمبر علیه الصلاة و السلام په وینا کی د معروف مقصد واضح او روښانه شوی دی:

معروف (نیکی) وکړی او له ناوړه کار څخه ځانونه وژغوری.

او گوره، د خلکو هغه خبرہ چی له هغوی څخه له ستنیدو وروسته ستا په باب ویل کیږی او په غوږونو دی ښه لگی هغه پر ځای کړه او وگوره هغه څه چی د خلکو له منځ څخه ستا له تگ وروسته ستا په باب ویل کیږی او ستا په غوږونو ښه نه لگی له هغه څخه ډډه وکړه (له حرمله بن عبدالله څخه په الادب المفرد په کتاب د بخاری حدیث)

د غه راز آنحضرت «صلی الله علیه وسلم» فرمایلی دی، نیکی ښه خلق دی، او گناه هغه څه دی چی په سینه کی دی ځای پر ځای شوی خو ته پری خوښ نه یی او نغواړی چی خلک وربا ندی خبر شی (له مسلم څخه د نواس بن سمعان په روایت)

مفهوم غوذ داو د جادوگرانو او تیرایستونکو له خوا د شعبده بازیو په نامه یی شهرت موندلی وو لکه څنگه چی له عقبه بن عامر څخه د امام احمد په مروی حدیث کی یی فرمایلی دی (هر چا چی تمیمه په غاړه کی وځړاوو داسی دد چی شرک یی راوړی وی) او په بل روایت کی چی (ابو داود او نسائی او ابن ماجه او حاکم له عقبه ابن عامر څخه را نقل کړی) آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی (هرچا چی تمیمه وځړاوو لوی خدای به د هغه مقصد تر سرد نکړی او چاچی درعه وځړاوو لوی خدای به دعه او آرامتیا ور په برخه نکړی) (تمیمه مری دی او د عه د کودیو په معنی دد ) ( خو تعویذ چی په هغه کی قرآنی آیتونه او د لوی خدای نومونه لیکل شوی وی عالمانو جائز بللی - ژباړونکی )

دا وود تداوی او معالجی په باب د نبی علیه الصلاة والسلام ارشادات خو د سالمو او روغو اشخاصو د روغتیا ساتنی په باب هم د آنحضرت صلی الله علیه وسلم روښانه او ځرگندی لارښودنی شته څکه د روغتیا ساتنی قواعد عمومی قواعد دی چی په آفرینش کی د لوی خدای د لاری له چلندونو سره سمون لری او د لوی خدای په امر د جوړ شوی صورت د ښی ساتنی سبب گرځی لکه څنگ چی الله سبحانه و تعالی (سبح اسم ربک الاعلی الذی خلق فسوی - سورة الاعلی - یا ایها الانسان ما غرک بربک الکریم الذی خلقک فسواک فعدلک - سورة

په دی اساس د معروف کلمه او د بر کلمه دواړه مرادفی او د نیکی په معنی دی او د منکر کلمه د اثم کلمی مرادف د گناه په معنی دد ، لکه څنګه چی رشید رضا پ خپل تالیف کړی تفسیر کی وایی « هر څه چی په هغه کی نفس او مال ته ضرر او یا له دی پرته نورو شیانو ته ضرر وی ، له ټولو سخت ضرر ټولنیز فسادونه دی »

نو مروف یا نیکی د اسلام د ښو عملونو صالح ضمیر دی او منکر د هغه څه تعبیر دی چی اسلامی ټولنه د هغه صالح ردوی. او په دی صورت کی لازمه دد چی په اصطلاح د امر بالمعرف او نهی عن المنکر یادونه دوام ولری. او د ټولنی د صلاح او ښیګڼو دساتلو لپاره ضرور باید د ټولنی افراد ځان ته متوجه وی. که چیری داسی وکړی د گمراهانو گمراهی به ورته زیان ونشی رسولی. ځکه د هغوی اکثریت د خدای په طاعت کی کلک او پابند دی. (یا ایها الذین آمنو ، علیکم انفسکم لا یضرکم من ضل اذا اهتدیتم = ای مسلمانانو د خپلو نفسونو مراقبت وکړی. تا سو ته به ضرر ونشی رسولی هغه کسان چی گمراه شوی دی که چیری تاسی لاره موندلی وی. د المائده سوری ۱۰۵ ایت) دغه راز رسول علیه السلام فرمایی له خپل ورورسره مرسته وکړی که ظالم وی که مظلوم یو صحابی وپوښتل : ای د لوی خدای پیغمبره ! له مظلوم سره خو به مرسته وکړو خو که چیری هغه ورو

ظالم وی ځنګ ورسره مرسته وکړو؟ پغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل که ته وکړی شی هغه له ظلم څخه واړوی پخپله له هغه سره مرسته دد. (له انس څخه د بخاری روایت)

*

خو اما احسان چی په حدیث شریف کی داسی تعریف شوی دی: احسان هغه دی چی ته د خدای پرستش وکړی لکه څنګه چی هغه وینی، پس که ته هغه ونشی لیدلی هغه تا وینی. (له عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه څخه متفق علیه حدیث) - د غه احسان له ټولو ښیګڼو څخه ستره ښیګڼه دد. په هر کار کی ښیګڼه او ښکلا په زړه پوری کار دی، چی خدای جمیل دی او جمال یی خوښ دی. (د ابن مسعود په روایت د مسلم حدیث)

(فاصبر صبراً جمیلا) = پس صبر وکه جمیل صبر - د المعارج د سوری پنځم آیت)

**(فاصفح الصفح الجمیل)= ګذشت ولره نیک ګذشت - د الحجر د سوری ۸۵۷ آیت)**

(و سرحو هن سراحا جمیلاً)= او هغه ښځی په نیکی سره خوشی کړی. د الانحراب د سوری ٤٩ آیت)

(و اهجر هم هجراً جميلاً ) = او گوښه شی له هغوی څخه خو په ښه شان گوښه د المزمل سوری ۱۰ آیت)

د ښکلا پدیده باید په نورو ارزښتو نوکی هم وځلیږی: په اصلاح، معروف او صدقی او له همدی امله وینو چی گن شمیر د غه شان تعبیرونه یو د بل پرځای استعمالیږی د صدقی د تعبیر لپاره د احسان استخدام او د غه راز د هغه عکس او هم معروف چی ځینو وختونو او حالاتو کی د احسان د تعبیر لپاره پکارول کیږی: (فامسکو هن بمعروف او سرحوهن بمعروف = هغه ښځی په احسان سره وساتی، یا په احسان سره خوشی کړی - د البقری سوری ۲۳۱ آیت) او (فامساک بمعروف أو تسریح باحسان)

*

اوس باید پوه شو چی که یو مسلمان فرد پر ځان واجب وگرځوی چی په ورځ کی څه نا څه په وي مدنی تصرف لاس پوری کړی چی په اسلامی ټولنه پوری د انتساب مصداق دی، په دی صورت کی به د د ه صدقات په یقین سره روغتیایی صدقات هم له ځانه سره ولری. لکه روغتیا ته د مضرو شیانو لری کول او د تندرستی لپاره د گټورو شیانو وړاندی کول او د روغتیایی موسسو په جوړ ولو کی برخه اخستنه او له هغو سره مادی مرسته او په چاپیریال کی د هر ډول فساد و

له منځه وړلو لپاره مبارزه او د ټولنې د هر فرد لپاره د ښو خوړو او مناسبو اوبو د رسولو د ضمانت په لاره کې کارکول او د واکسين په شان د روغتيايي اجرأتو تطبيق او د ناروغۍ د خپريدو د مخنيوي لارو او نوروته رابلل

*

و اما بعد:

هغه څه چې په دې رساله کې په بيړې سره ليکل شوي د روغتيا د ستري فقې څو محدود فصلونه دي، خو زه غواړم ووايم د روغتيا فقه يا روغتيايي پوهه د فقې د نورو برخو په شان ژوندي اغيزمنه او د هرزمان او مکان لپاره سازگاره ده. مخکې مو يادونه کړې وه چې د نړۍ روغيتايي سازمان په دې لسيزه کې ټول د لمړنيو روغتيايي چارو د رعايت لاوچاروته رابللې دي چې د ټولو لپاره د روغتيا د تحقيق زمينه گرځيدلې وي. د نړۍ هيوادو د غه اسلوب په ښه شان منلې دي او په تطبيق کې يې هڅه کړيده خو لا هم په هر ځاى کې ستونزې شته چې د روغتيايي چارو د پرمختگ خنډ گرځي چې له ټولو څخه مهم څلور مشکله دي.

١ - د اساسي منابعو او بشري ځواک کمښت.

٢ - د ټولنې د بيلابيلو برخو ترمنځ د همکارۍ نشتوالى

٣ - د ټولنې د گډون کمښت

٤ - د اداري ويجاړتيا او د ښه تدبير نشتوالی

او اوسنی نړی د اسی لاری چاری ته اړتیا لری چی د هغی په واسطه پر مشکلاتو بریالی شی البته که یی غوښتنی وی د ټولو لپاره د صحت هدف ته ورسیږی.

په دی برخه کی اسلامی چلند د ښه حل لاره لری.

او لکه څنګه چی څرګنده ده اسلام د بیلابیلو قضایا و په معالجه کی عمومیاتو کوته متوجه ده او هیڅ مسئله له نژدی یا لری اتصالاتو څخه په جلا توګه نه ارزیابی کوی. دا د ټولنی د قضایا و په معالجه کی د اسلامی عمل د لارو چارو اساسی مميزه بلل کیږی او تر هغه پوری چی د اوبو رسولو په سیستم کی ښه والی را نشی تر هغه پوری چی په تنظیفی خدمتونو او د ټولنی د افرادو په اقتصادی سویه کی ښه والی رانشی او د انسانانو په ښوونه، تغذیه، پوښاک او استوګنځی کی بهبود رامنځ ته نشی امکان نه لری چی عمومی روغتیا دی سمه شی.

د روغتیا په رعایت کی اسلامی چلند د اسلامی ټولنی پر هغو اساسی ارزښتونو ولاړ دی چی مخکی مو بیان کړ او هغه عبارت دی له پیوستون (تماسک) همکاری او مرسته، له ځانه پوره والی او احسان. د خود کفائی په

حالت کی تولیدات او عوائد زیاتوالی مومی او په تعاون او همکاری سره د ټولنی بیلا بیلی برخی سره نژدی کیږی. کار گر او بزگر ، انجنیر او سورا گر او طبیب ټول د نیکی تقوی، خیر او صلاحیه کارکی د تعاون لپاره سر واحدی او په تماسک او پوستون سره داداری حرابی او د تدبیرنو نشتوالی له منځه ځی او په تیره بیا د ځان ژغورنی مبدأ او د شورا مبدأ په ښه وجه تحقق مومی او په گډ او شریک احسان سره ټولنه مخ په تکامل درومی ځکه هر څوک هڅه کوی چی خپل کار او وظیفه په ښه شان سرته ورسوی. له دی امله چی احسان کوی او لوی خدای د ده عمل وینی، هغه صدقه حسابوی او ښه پاداش ورکوی. نو شخص په دغه شان درک سره په پاکی او اخلاص سره وظیفه سرته رسوی. لکه څنگه چی پیغمبر علیه السلام فرمایی هیڅکله یو نیک کار ناڅیزه مه شمیری (له ابو داود او مسلم او ترمذی څخه مروی حدیث)

روغتیایی رعایت لومړی د ژوندانه د ناوړه او کر کجنو کړو وړو بدلولو ته رابلل دی چی تنی انسان له اسلامی طریقی څخه په لری والی سره پکی اوسیږی، اسلام بلنه ورکوی چی انسان د دغولا روچارو په پیروی سره خپل وړ او په زړه پوری ژوندانه ته ورسیږی. دا فطری همشنیی مبدأ دد (ان الله لا یغیر مابقوم حتی یغیروو اما بانفسهم = په یقین سره چی لوی خدای د یو قوم حالت نه بدلوی تر

وختـه پوري چي د غه قوم پخپله خپل حالت بدل نکي (د الرعد د سوري ١١ ايت) د ژوند د لارو چارو بدلول يواځي کـولـي شي د انسـان روغـتـيـا ښـه کـړي او د روغتيايي رعايت تکليفونه تر يوي اندازي پوري کم کړي.

روغتيايي رعايت په دوهمه مرتبه کي د پراختيا او پرمختګ د اساسي اړتياو په لړي کولو کي له ځانه پوره والي ته بلنه ده چي روغـتـيـا او سلامـتـيـا د هغـه يوه برخه جوړوي.

## دودي او لوړتيا (ترقي) اساسي ضرورتونه

د ارتقا يا لوړتيا يا پرمختګ د اساسي اړتياو د برابرولو مفهوم هغه مفهوم دی چي د اسـلام د تمدن په تاريخ کي ژوري ريښي لري. څـوک چيي د حـضـرت پيغمبر عليه السلام سيرت لولي، پوهيږي چي انحضرت په مدينه منوره کي له ځاي پر ځاي کيدو وروسته د نوي اسلامي ټولني د اساسي اړتياو د برابرولو په لړ کي لمړي د امنيت په تأمين کي پاملرنه وکړه - امنيت هغه شرط دی چي د ترقي نور شرطونه د هغه له سيوري پرته نشي تر سره کيدی. قرآن کريم په څو ځايونو کي د امن او امان اهميت بيان کړي دي او د هغه دپاره يي د حضرت ابراهيم عليه السلام دعا ياده کړيده.

(رب اجعل هذا بلداً امناً و ارزق اهله من اثمرات = زما ربه دا خاوره (د مکی ښار ) د امن ښار وګرځوه او اوسیدونکو ته یی له میوو څخه روزی ورکړه ( د ابقره سوری ۱۲٦ آیت ) د یوسف علیه السلام یادونه کوی چی خپل مور او پلار او خپلوو رونړو ته یی وویل (ادخلوا مصر ان شاء الله آمنین = مصر ته داخل شی که لوی خدای غوښتی وی په امن کی او په قرېشو ېی منت اېښی دی (فلیعبدو ارب هذاللبیت الذی اطمعهم من جوع و آمنهم من خوف = نو باید ددی کور له خاوند څخه وپوښتی ، هغه ذات چی هغوی ته د لوږی په وخت کی خوراک ورک او له ویری څخه یی پ امن کی کړل. (د قریش سوری ۳ - ٤ آیت) او د لوی خدای پیغمبر حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم وفرمایل له تا سو څخه هر یوو چی امنېت درلود او له جسمی پلوه په عافیت کی وو په داسی حال کی چی ورځی آذوقه یی هم موجوده وی داسی دی لکه چی ټوله دنیا یی په واک کی ویی . (له خپل پلار څخه د عبدالله بن محصن انصاری په روایت ترمذی حدیث) له همدی امله پیغمبر علیه اسلام د مهاجرو او انصارو ترمنځ دوروری تړون رامنځ ته کړ . او په یو خاص قرار دا دسره یی د مدینی شاوخوا یهودو ته امنیت تأمین کړ . او له هغو اساسی اړتیا و څخه هچی پیغمبر علیه اسلام د هغه به تأمین کی هڅه او توجه وکړ د او په دی لکه څنګه چی د حضرت عثمان رضی الله عنه په حدیث کی

دی کله چی حضرت محمد علیه اسلام مدینی ته تشریف راوړ د رومه له ځاپرته نوری ښی او د څښلو وړ او به نه وی نو آنحضرت وفرمایل څوک دی چی واخلی د رومه ځاه او مسلمانان له هغی څخه په استفاده کی شریک کړی. او په جنت کی له دی ښه تر لاسه کړی.

د پیغمبر علیه اسلام په دی فرمودی سره حضرت عثمان ذوالنورین د خوړو اوبو لرونکی دغه ځاه واخستلا و د مسلمانانو په واک کی یی ورکړه. (له عثمان بن عفان څخه د ترمذی په روایت) او هم پیغمبر علیه اسلام ویلی دی د څښلو اوبه چی تږی ته یی ورکوی صدقه ده له ابی ذر رضی الله عنه څخه په بخایر کی د الادب المفرد کی)

د دغو ضروریاتو بل ضرورت خواړه دی او لوی خدای «ج» په قرآنی آیتونو کی هغه له امن سره یوځای یاد کړیدی. لکه څنګه چی مخکی مو ولیکل او په احادیثو کی مو ولیدل چی پیغمبر علیه السلام هم خواړه له امنیت سره نژدی یاد کړیدی او هم پیغمبر علیه السلام کرکیلی او زراعت ته چی د خوړو منبع ده هڅونه ا ترغیب کړیدی لکه په دی حدیث کی مسلمان هیڅ نیالګی نه کینوی او کومه دانه نه کری چی له هغه وروسته یی بل انسان یا څاروی وخوری مګر دده دغه عمل صدقه بلل کیږی (له جابر څخه د مسلم روایت)

او هم د دغو ضروریاتو له جملې څخه جومات دی، جومات په اسلام کې د عبادت ساحه د تربیې ځای، د علم مدرسه د ادب او د مسلمانانو د راټولیدو ځای دی په صحیحینو او د احادیثو په نورو کتابونو کې له انس بن مالک څخه د جومات نکل راغلی او په شاه او لاسونو سره یې د جومات د ودانې د ډبرو په وړلو کې د رسول کریم او دده د یارانو برخې احستنې څرنګوالي بیان شوی دی. چې آنحضرت د نورو په شان تکلیف تیراوو او دا خبره یې نه خوښوله چې ځان له نورو اصحابو څخه ممتاز وګڼي.

دغه راز یو بل اساسي ضرورت تعلیم دی او پیغمبر علیه اسلام د علم د زده کړې هڅونه کړیده بلکې هغه یې فرض او د نورو فرائضو په شان یې په پاکۍ او اخلاص متصف کړیده او فرمایلي یې دي چې د علم زده کړه به هر مسلمان فرض ده (له انس بن مالک څخه د ابن ماجه روایت) چې د علم فرضیت ایجابوي چې اسلامي دولت پر ټولو مسلمانانو نارینه او ښځو باندې هغه لازم وګرځوي . څکه د علم زده کړه د معروف یوه برخه ده.

لوی خدای «ج» پر هغو کسانو چې په ځمکه کې یې د حکم چلولو قدرت ورکړیدی واجب کړیدی چې فرایض پر ځای کړي او معروف باندې امر وکړي ( د الحج سورې ٤١ ایت ) دغه راز محمد رسول الله علیه وسلم فرمایلي دي : خلک

الانفطار – و نفس و ما سواها – سوره الشمس ) د سوا کلمه چی د عدل او برابری په معنی ده یاده کړی ده نو ددی عدل او برابر حالت ساتنه د اسلامی شریعت د مقاصد و اساسی جز دی. ځکه شریعت د بندگانو د گټو د ساتنی او عالم او ممتازه مجاهد عز الدین بن عبدالسلام په خپل ارزښتناک کتاب « قواعد الاحکام فی مصالح الانام » کی دغه حقیقت روښانه او ورپسی یی په توضیحی ډول داسی ویلی دی (شریعت په مجموع کی یا د مفاسد و د دفعی لپاره دی یا د منافعو او مصالحو د جلب لپاره. هر وخت دی چی د لوی خدای (یا ایها الذین آمنو ) غږ واورید ددی غږ په مابعده مضمون کی فکر او سوچ وکه نو پوه به شی چی یا خیر دی چی تاورته رابولی یا شر دی چی له هغه څخه دی منع کوی او یا د تحریک او توبیخ تر منځ جمع ده او لوی خدای « ج » په خپل کتاب کی بیان کړیدی هغه څه چی په ځینو احکامو کی د مفاسدو په توگه یاد شوی له هغو څخه د ډډی کولو او لری والی په مقصد دی او هغه څه چی په ځیننو احکامو کی د معالجو په توگه دی په دغو مصالحو باندی د ترغیب، تحریک او لاس پوری کولو په مقصد دی).

او (عز الدین بن عبدالسلام) رحمت الله علیه رښتیا ویلی دی، ځکه لوی خدای « ج » خپل پیغمبر (علیه الصلاة والسلام) ته فرمایلی دی (کذلک یضرب الله الحق و الباطل فاما الزید فیذهب جفا او اما ما ینفع الناس فیمکث فی الارض

پوهیږي او پوهه غواړي او له دوی نه وروسته په کې خیر نشته (له ابی دردا څخه د دارمی حدیث.) او هم آنحضرت د بدر د جګړې اسیرانو ته اعلام وکړ هرچا چې یو مسلمان ته لیکل او لوستل ورزده کړل آزاد دی، د غه راز انحضر د مطلوب علم دول وتاکه او تثبیت یې کړ وې فرمایل: ای لویه خدایه زه له تا څخه ګټوره پوهه غواړم (له ام سلمه څخه د امام احمد روایت شوی حدیث) او وی ویل لویه خدایه زه له تا څخه پناه غواړم له هغې ګټې علم څخه (له زید بن ارقم څخه د مسلم روایت شوی حدیث) د غه راز آنحضرت علیه الصلاة والسلام د تعلیم او تعلم ښې تربیتي لارې تعین کړیدې فرمایلي دي په یقین سره چې علم له استاد څخه زده کیږي (مروی حدیث چې خطیب له ابی هریره څخه پخپل تاریخی کتاب کې بیان کړیدی.) او د رنو اصحابو ته یې وویل تعلیم ورکړی او آساني راولي، سخت یې مه بیانوی زیری ورکوئ او سی او خلک مه تبنتوی. (له ابی عباص څخه د بخاری او احمد په روایت.)

د دغه شان ضروریاتو له جملې څخه بل ضرورت د دخل استمرار دی او دا په کار او کسب امکان پیدا کولی شی، پیغمبر علیه السلام ویلی دی هیڅکله چا د خپل لاس له عمل څخه بهتره ډوډۍ نه ده خوړلې او په یقین سره چې د لوی خدای پیغمبر داود «ع» د خپل لاس د کار حاصل خوړی (بخاری حدیث له مقدام بن

معدي کرب ځخه) او هم يي وفرمايل ډيره ښه ګټه د کارګر د لاس ګټه ده که په اخلاص کار وکړی (له ابی هريره څخه د امام احمد حديث) او هم يي په همدی معنی کی ويلی دی (اطيب الکسب عمل الرجل بيده )د لاوسط په کتاب کی د احمد او طبرانی روايت او له رافع بن خديج څخه د حاکم په روايت) ، دغه راز آنحضرت فرمايلی دی په هر مسلمان صدقه ده. پوښتنه وشوه کی يي پيدا نکړی؟ ويی فرمايل: پخپل لاس دی کار وکی هغه وخت دی ګټه تر لاسه کړی او نوروته دی هم صدق کړی (له ابی موسی اشعری څخه متفق عليه روايت) او موږ نن په کلکه سره د هغه چلند پيروی ته اړه لرو چی پيغمبر عليه اسلام راته وضح کړيدی. او موږ د غه اسلوب يا لاری چاری دودی او پرمختګ د اساسی اړتياو برابری شوی لاری بولو چی د ځمکی پرمخ د انسان د ترقی او ودانی د چټک حرکت تکی پيدا شی . او لوی خدای «ج» دا مطلب بيان کړی (هوانشاکم من الرض و استعمرکم فيها = لوی خدای تاسوله ځمکی څخه پيدا کړی او د ځمکی د آبادی لپاره يی مامور کړی (د هود سورد ٦١ آيت) دا هماغه حقيقت وو چی مسلمان دانشمند ابن خلدون پخپل تيز او ژور فکر سره درک ه مقدمه کی يی داسی تعبير کړ د انسان لپاره ټولنيز ژوند ضرور دی او که نه د انسان هستی نه بشپيږی او د نړی آبادی او د الهی خلافت کار تحقق نه مومی او لوی خدای انسان

ته د ځمکې د آبادۍ لارې آسانه کړې ده لکه څنګه چې فرمایي (ولقد مکناکم فی الارض و جعلنا لکم فیها معایش = او په یقین سره مې تاسو پر ځمکه میشته کړی او تاسو ته مې پر ځمکه د ژوند کولو اسبابونه برابر کړل (د الاعراف سورې ۱۰ آیت). او هم (جعل لکم الرض ذلولاً فامشوافی مناکبها و کلو من رزقه ځمکه یې ستاسو په واک کې ورکړه. نو ولاړشۍ شاوخوا ته لوړو او ژورو ته او وخورې رزق او . . . د الملک سورې ۱۵ آیت) نو له دې امله طبیعي ده چې مسلمان بنده د خدای «ج» امر د ځمکې د آبادولو لپاره عملي کوي او په دې لاره کې خپل وروستي زیار او زحمت وباسي ځکه لوی خدای عزوجل دی په همدې عمل مامور ګرځولی دی او هم پیغمبر علیه السلام مسلمانانو ته څرګند وې چې جګ لاس له لاندې لاس څخه بهتره دی له حکیم بن خرام څخه متفق علیه حدیث)، او دا چلند له رسمي سطحې سره برابر دی که منل کیږي او که نه منل کیږي، جومات کولی شي لکه څنګ چې اسلام ورته غوښتې دی خپل لارښونکې رول ادا کړي او امکان لري امامان واعظان او خطیبان او استادان مسلمه امت په ټولو ټولینز و حالاتو په تیره بیا روغتیایي چارو کې رهبري کړي . او له همدې امله په روغتیایي موسسو او له ټولو مخکې په اسلامي طبي مرکز لازمه ده د ضرورت وړ علمي او تعلیمي مواد د اسلام په رڼا کې په روغتیایي اساسي

وسایلو سمبال کړي. او دغه راز کم مصرفه ساده تعلیمي لاري چاري برابري کړي، څکه پیغمبر علیه اسلام د ښونکي په توګ هرا استول شوی دی او خپل امت ته یې ویلي دي (علموا و یسروا و بشرو او لا تنفروا = تعلیم ورکړي او آسانه لار غوره کړي، زیري ورکړي متنفر مه ګرځوی = له ابي عباس څخه د بخاري او احمد روایت شوی حدیث) او آنحضرت «صلی الله علیه وسلم» تعلیمي ډیری آسانه لاري ان بی سواده او نا اشنا خلکو او ملت ته په لیکلو او حسابولو سره وضع کړي.

*

په پای کې غوام یو ساده مثال عرض کړم د یو جومات امام په یوو کوچني کلي کې د خلکو په تعلیم بوخت شو چې په څه ډول زیات خوراکي مواد ترلاسه کړي او په ښه شان یې په کار واچوي او د کلي واړه او زاړه ته ور زده کړي چې د ناروغیو لیږدونکي: حشرات به څه ډول له منځه یوسي هغه حشرات چې رسول کریم یې د وژلو امر کړیدیاو هغوی ته یې ور زده کړل چې د رسول کریم په پیروی له پیښو څخه لري والي غوره کړي د مثال په ډول آنحضرت یوو شخص ته چې غشي ورسره وو وفرمایل چې د غشو سرونه پخپل لاس محکم ونیسي چې مبادا په کوم مسلمان ونه لګیږي. دغه راز یې د کلي ډیرو خلکو ته د زیاتو ناروغیو پر ضد د

مبارزی لپاره ساده او کم مصرفه لاری چاری ور زده کړی د مثال په ډول د تبی لرونکی شخص د تبی او حرارت د کمولو لپاره د اوبو استعمال چی تبه د دورخ تفت دی، نو هغه په سړو اوبو سړه کړی (له بی بی عایشی څخه متفق علیه روایت) ذغه راز خلکوته یی ورزده کړل چیی په خوړلو ، څښلو ، کور او کالیوکی نظافت او پاکی رعایت کړی ، او هغه کسان چی د سیمې او چابیریال په پاکولو لاس پوری کړی او له فسادونو څخه یی ډډه وکړی ځکه په ځمکه کی فساد هر ډول چی وی حرام دی. او هغوی ته یی له ورور سره د همکاری او مرستی لاری چاری ور وښودلی په هر منلی کار کی یی ورته د علاقی او حرص او له هر ناوړه عمل څخه یی د ډډی کولو لاری چاری ور زده کړی. په دی ډول یی هغوی د اسلامی ژوندانه لارو چاروته چی د خلکو د دواړو جهانونو د نیکمرغی ضمانت کوی متوجه کړل.

د همدی کوچنی او په لری گوټ کی پراته کلی امام ته می دی سلام وی!

****

- الایه ۱۷ سوره الرعد ) لوی خدای د حق او ابطل لپاره دغه شان مثال راوړی ،
اما کفها هری خواته تیت او فاشان کیږی خو هغه څه چی خلکو ته گټه رسوی د
ځمکی پر مخ دریږی. لوی خدای د حق دین چی د خپل پیغمبر په واسطه را
واستاوو په یقین سره ی هغه خلکو ته په دنیا او آخرت کی د خیر او گټی مرکز
وگرځاوو. لکه څنگه چی علام یی وکړ (یا ایها ناس قد جاءکم الرسول با لحق من
ربکم - الایه ۱۷۰ سورة النسا = ای خلکو په تحقیق سره چی پیغمبر راغلی دی
تاسو ته په حق سره (اسلام او قرآن) ستاسو د پروردگار له خوا ) (و الذی انزل
الیک من ربک هو الحق - الایه سوره الرعد = او هغه څه چی د پروردگار له خوا
دی پر تا نازل شوی په تحقیق سره چی حق دی) (و یری الذین او توا العلم الذی انزل
الیک من ربک هو الحق - آیه - ٦ سوره سبا = او هغه څه چی د لوی خدای «ج» له
خوا پر تا نازل شوی پوهان باور لری چی هغه حق دی)

اوښایی امام نجم الدین حنبلی د (لا ضرر و لاضرار) د حدیث به شرعحکی د
موضوع حق په ډیره ښه وجه ادا کړی وی چی فرمایلی دی" (دغه حدیث ایجابوی
د مصالحو درعایت او د مفاسدو د نفی ثبوت) بیایی د دی مطلب لپاره له قرآن او
حدیث څخه په څو تفصیلی د لیلونو سره استدالال کړی او وروسته یی د خپلی
طریقی پر اساس ویلی دی (مونږ په معاملو او هغو ته ورته کارونوکی مصلحت

ته اعتبار ورکړ نه په عبادتونو اونورو روته کارنوکي ځکه عبادتونه د شارع خاص حق دي او د شارع د حق پيژندنه د اندازې، څرنګوالي، زمان او مکان له پلوه ممکن نه دی. مګر دا چې د شارع له خوا بيان او توضيح شي او هغه وخت بنده د هغه په ادا کولو لاس پوري کړي او دا د مکلفينو (حقوق العباد) د حقوقو بر خلاف دي ځکه حکمونه يې شرعي سياست دي چې د هغوی د مصالحو لپاره وضع شوي. له همدې امله د دوی مصالح د اعتبار او اتکاء وړ دي).

(اسلامي امت بلکې نور اديان هم متفق دي« لکه څنګه چې امام سيوطي په موافقانوکي يادونه کړې» په دې چې شريعت د پنځه ګونو اړتياو د ساتنې لپاره چې عبارت له دين، نسل، نفس مال او عقل څخه وضع شوي دي او دا هماغه د انسان اساسي حقوق دي. او مونږ به په ډير کم سوچ او فکر سره پوه شو چې د هغو له جملې څخه د ريو چې هغه نفس نسل او عقل دي بشپړه ساتنه د روغتيا او سلامتيا له ساتنې پرته ممکن نه دي. خو د روغتيا ساتنه پخپله لازمي خبره ده د دغو اړتياو د ساتنې لپاره او د روغيتا ساتنه نشي تر سره کيدی مګر د نورو اړتياو او د ژوند د اساسي حوائجو د پوره کيدو په صورت کې چې هغه خوراک، څښاک، پوشاک، کور، خاوند يا ميرمن، د حمل او نقل وسايل امنيت، تعليم او د لګښتونو مدرک دي.

حکمونو د استنباط لاري چاري انسان ته اسانه شوي واي.

په يقين سره چي ورور داکتر محمد هيثم الخياط هڅه کړي ده چي د روغتيايي مسئلو د فقې په ساحه کي د کفائي فرض د ادا کولو لپاره قيام وکړي. له همدي امله يې د طبي علومو د اسلامي سازمان کريمانه بلنه منلې او د (فقه الصحه) په نامه مطالب يې برابر او هغه د اسلامي طب په څلورم کنفرانس کي چي په ۱٤٠٥ هـ ق ۱۹۸۹ مېلادي کال کي پ کراچي جوړ شوي وو وړاندي کړل چي د همدي کنفرانس په اختصاصي نشريه کي د اسلامي سازمان له خوا نشر شو. او د عامه گټي اخستني په مقصد مو لازمه وګڼله چي د غه وينا د روغتيايي لاښودنو په لړ کي خپره شي. په تيره بيا وروسته له هغه چي ليکونکي په دغه وينا کي له غرأ شريعت څخه يو شمير نصوص پکي ور زيات او نور لازم تشريحات يې پکي راوستل او د داسي احاديثو په راتولو کي يې هڅه وکړه چي د صحت په مرتبه او يا څه ناڅه د ښو احاديثو په درجه کي وي.

د دي مطلب د وړاندي کولو په پاي کي د لوي خداي «ج» له درباره څخه هيله کوو چي دغه رساله د گټوري پوهي په جلمه کي حساب کړي او لوستونکو ته همت وركړي چي پر هغو روغتيايي قواعدو چي له شرعي نصوصو څخه را اخستل شوي دي پابند شي او ليکونکي ته د دي رسالي د فصلونو ليکنه آسانه وگوڅوي چي لا زيات روغتيايي تفصيلات ولري او د يو بشپړ کتاب په توگ د يو گټور او ارزښتناک اثر په توگه را منځ ته شي.

ان شاء الله تعالى لوي خداي «ج» مهربانه او مددگاز دي.

حسين الجزائري

# روغتیائی لاربښودنی

د دنیی لاربښودنو په اساس د روغتیایی زده کړولړی



# روغتیائی پوهه

د ډاکټر

هیثم الخیاط

په قلم





د نړی روغتیائی سازمان

د مدیترانی د حوزی سیمه ایز دفتر

# روغتیائی لارښودنی

د دینی لارښودنو په اساس د روغتیایی زده کړو لړی




# روغتیائی پوهه

د ډاکټر

هیثم الخیاط

په قلم





د نړی روغتیائی سازمان

د مدیترانی د حوزی سیمه ایز دفتر

۱۹۹٦

# روغتیائی لاربښودنی

د دینی لاربښودنو په اساس د روغتیایی زده کړو لړی




# روغتیائی پوهه



د ډاکټر
هیثم الخیاط

د نړی روغتیائی سازمان
د مدیترانی د حوزی سیمه ایز دفتر

د دی نشریی پیژندنه او د ځوتکیو په باب ځر ګندونی
الخیاط محمد هیثم
د محمد الخیاط روغتیایی پوهه.
أ ـ و ، ٤٤ ص . ـ ( د دینی لارښودنو پر اساس د روغتیایی زده کړو لړی ، ٤ )
١ عامه روغتیا ٢ اسلامی زده کړی او لارښودنی الف: آدرس یا پته
ب، د نړی د روغتیایی سازمان سیمه ئیز دفتر ج : لړی
( دملی طبی کتابتون صنف بندی 18 WA ) ISBN 92 -- 9021 -- 214 -- 4

د نړی روغتیایی سازمان د غوښتنو تر لاسه کولو ته بشپړ د اجازه ور کړی او هم د خپلو هر ډول خپرونو د ژباړی هر کلی کوی. په دی ارتباط هر ډول معلوماتی غوښتن لیکونه او پوښتنی د نړی د روغتیایی سازمان مربوط د مدیترانی د حوزی د سیمه ئیز دفتر د روغتیایی او طبی خپرونو د ښاغلی رئیس په نامه په دی پته استول کیږی: پوست بکس ١٥١٧ سکندریه ٢١٥١١ د مصر عربی جمهوریت.

دا دفتر خوشحالیږی چی په متن کی د راغلو بدلونونو په باب او هم په دی باب چی د نویو چاپونو ، ترجمو او بیابیا چاپولو لپاره په پام کی نیول شوی دی ډیر نوی معلومات وړاندی کړی.



په دی نشریه کی اینبودل شوی نومونه او د مطالبو د وړاندی کولو څرنګوالی په هیڅ وجه د کوم هیواد یا سیمی، یا ښار یا حاکمه قوی دوضع شویو قوانینو په باره کی د سازمان د ریاست د مقام د رأی ممثل نه دی. **دغه راز د هغوی د پولو او سرحدونو د ټاکلو په باب د غه سازمان کوم خاص نظر نه لري.**

او هم د یوی موسسی مشخصه یادونه او یا د معین صنفتی تولید یا دول په دی معنی نه دی چی د نړی روغتیایی سازمان هغه بهتر او ښه کنپی او یا د هغو په باب ځانګړی سپارښتنه کوی چی ګنی هغه پر نورو ورته شرکتونو او ورته تولیداتو لوړ او مهم بولی.

د چاپ یا خپرنو ځای د مصر د سکندریی ښار

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

د مدیترانی به حوزه کی د نړی د روغتیا یی
سازمان سیمه ئیز رئیس داکتر حسین عبدالرزاق الجزائیری

هیڅوک له دی حقیقت څخه انکار نه کوی چی روغتیا او سلامتیا د لوی خدای « ج » له سترو نعمتونو څخه گڼل کیږی . د اسلام له نظره روغتیا له ایمان وروسته د ډیر ستر نعمت په توگه بلل کیږی ځکه چی د لوی خدای (جل جلاله) پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) فرمایلی دی: (له یقین وروسته بل ډیر ښه شی روغتیا او سلامتیا ده).

سر بیره پر دی دلته یو بل نعمت شته چی انسان یی کمه شکریه ادا کوی، او هغه دا چی لوی خدای « ج » او د تقدیر او هدایت خاوند خپل بندگان د دواړو کونینو (دنیا او آخرت) د خیر په لور دلالت کړل او هغه لوری ته یی رهنمائی کړل چی هغه کی انسانی گټی او ښی گڼی نغښتی او د انسان د نفس، عقل او نسل د ساتنی وسیله ده او له همدی امله قرآنی آیتونه او نبوی (علیه الصلاة و السلام) احادیث د روغتیا ساتنی گڼ شمیر اساسات او مبادی احتوا کوی، کوم اساسات چی د شخص د روغتیا ساتونکی دی او ددی آسانه شریعت په نصوصو کی کی خوارہ وارہ راغلی دی تر دی حده پوری چی حیرانونکی ده چی ولی د روغتیا او سلامتیا په اړه رسیدلی نصوص د نورو موضوع گانو پشان په مستقله توگه نه دی را ټول او تدوین شوی چی د هغو له تفصیلی دلائلو څخه د شرعی عملی